# ددولت لوانی دیوان

مقدمه

دپوهاند عبدالشکور رشاد

خپروونکی

پښتوټولنه

دادب او فولکلور لوی مدیریت

د
عزیزالله او محمدعارف غروال په اهتمام

دچاپ شمېر
نیټه :

یوزرټوکه
د۱۳۵۳ کال دمرغومی ۵

کابل
افغانستان

# سریزه

دبایزید روښان د وفات د څلورسوومې کالیزې د نمانځلو په مناسبت، پښتو ټولنې پریکړه وکړه چه د دولت لواڼي دیوان، د واصل اشعار، د خیرالبیان د قلمي نسخې فوتوکاپي، (د روښانیانو ملي نهضت) رساله، ادبي ستوری، او (په خارج کې پښتو خېړونکي) چاپ کاندي.

د خیرالبیان د نسخې چاپ د ادبیاتو او بشري علومو پوهنځي په غاړه واخست. د روښانان د حالنامې فوتوکاپي چه د هندله علیګړ څخه را غوښتل شوې وه په خپل وخت راونه رسیده او له همدې امله د چاپ څخه پاتې شوه. همدارنګه څو ورځې مخکې پښتو ټولنې ته یوه بله نسخه په لاس ورغله چه ښایي د روښان او یا د ده د پیروانو له خوا لیکل شوې وي. د وخت د کموالي په وجه د دغه نسخه هم چاپ نه شوه. البته پښتو ټولنه دا خپله وظیفه ګڼي چه د دغو قلمي نسخو د چاپولو په برخه کې اقدام وکړي.

د دولت لواڼي د دیوان د پاره د ادبیاتو د پوهنځي استاذ ښاغلي پوهاند عبدالشکور رشاد یوه مفصله علمي سریزه لیکلې ده. پښتو ټولنه د پوهاند رشاد له ډېر له پسې مرستو په تېره له دغې همکارۍ څخه چه د روښان د مړینې د څلورسومې کالیزې په مناسبت یې کړې دي د زړه له کومې خوښي کوي. ددې اثر د چاپ او صحافت په چارو کې ښاغلي عزیزالله او ښاغلي محمدعارف غروال ډېر زحمتونه ګاللي دي. سربېره پر دې د مطبعې کارګرانو او نورو کارکوونکو هم د دې کتاب د چاپ په برخه کې زیار ایستلی دی. د دوی ټولو خوشحالي، موفقیت او نیکمرغي غواړم.

محمد صدیق روهي
د پښتو ټولنې رئیس

# لواهی دولت

میستیسیزم Mysticism داسې افکار او عقاید او نظریات دي چه په هغې کې یوازې یو «حقیقت» په ګوته کیږي او انساني روح دیوه دائمي او بې زواله حقیقت یو داسې جز بولي چه په موقتي ډول یې دانسان په جسم او تن کې ځای نیولی دی یعنې داچه دنوی روح دازره او دا زړه په یوه تپه تیاره ترو ږمۍ کې راایسار شوی دی. دا روح (دلوی روح دا زړه برخه) تل په دې هڅه کې دی چه دمادي تن او تیاره تن څخه ځان خلاص او «دلوی روح» سره یو ځای شي دمیستیسیزم د تعلیماتو په اساس اسکېتیسیزم Asceticism (ریاضت، ترک دنیا) یوازینی لاره ده چه انساني روح له دې تپې تیارې څخه راوباسي او دحقیقت ته یې ورسوي.

دهمدې مفکورې او آیډیالوجۍ علم بردارانو ته ددنیا غم او ښادي ربړ او خوږ... او داسې نورې بې تفاوته لیدل کیږي داسې کسان دځمکني ژوند په باره کې فکر کول او ځان سترې کول بې ثمره بولي او دغه دیرو تنقید دي.

دوی یوازې د «نوی روح» او «حقیقت» سره د یو ځای کیدو او وصلت د لارو او چارو د موندلو په فکر کې ډوب تللي دي او ټول هاند او زیار یې په دې خوا کې په کار اچولی دی.

سوفیزم ته اخلاقي قوانین معیار و نه او دانسان اجتماعي مکلفیتونه او مسئولیتونه، اجتماعي

راشه درشه روابط او داسې نور بې تفاوته معلومیږي ، بې تغا و ته په دې معنی چه که حقیقت ته د رسید و په غرض

پر پوړ تنیو تیو دی پښتو ستر گی هم پټې شي دوه تاو ان نه لري او انسانی کمز ورتیا نه گڼله کیږي .

سوفیزم په انمه پیړی کی په اسلامی نړۍ کی پیدا او تر ننه پوري په بیلو بیلو اشکالو په انسانی تو لنو کی څرگند او خپور شوی دی .

دافکا رو او عقا یـد و دا دول حرکت ( تصوف ) په پښتنی نړی کی هم بې نفوذه نه دی پاتې شوی او دپښتنی ادب د تاریخ په بیلو بیلو دورو کی بې څرگندی غځونی لیدلی کیږي .

عرفانی طرز تفکر په پښتو ادب کی جوت رول لوبولی او دپښتو ژبې ادبی پانگه یې د کمیت او کیفیت له مخې غنی او خوند وره کړی ده .

دې جها نبینی چه د خپل ما دي او معنوي چا پر یال ز یږ ند ه ده د روښانیانو دا د بی نهضت د پیروانو اوارادتمند انو په افکا رواو اثارو کی په مسلکی ډول تبارز کوی .

همدا وجه ده چه د پښتو اکاډیمی دادب او فولکلور څانگی د موضوع داهمیت له مخې د روښانیانو داد بی نهضت د پوره او بشپړې مطالعی او څیړنی د پاره په لومړی مرحله کی دخینو تا درو او کمیاب قلمی نسخو دچاپ د پاره گام اوچت کړ اوپه دې لړ کی یې د بایزید روښان د څلور سو سی کالیزې د نمانځنی په نیکمرغه فرصت کې بر سیره په روښانی واصل د لوانی دولت د اشعا رو دیوان هم د ذوق خاوندانو ته وړاندی کړ .

اودپښتو ادب د څیړنی او پلټنې مینا نو ته یې په ډیر اخلاص په مخکې پردی ترڅوچه د رو ښا نیانو دادبی نهضت د تتو او تیا رو اړ خونو د روښانو لو دپاره دا کاډیمیکي مطالعی مواد څیړ و نکو ته په لا س ور شی

د بایزید روښان د څلور سو سی کلیزی د نمانځنی پو ترڅ کی خو د لوانی دولت ( د روښانیانو دادبی نهضت یو پوخ او خوږ ژبی شاعر ) د اشعا رود دیوان د چاپولو ضرورت څکه پیدا شو چه نوموړي شیخ د روښانیانو

دا دبی نهضت نو میا وړی او مسلکی شاعر دی او تر ډیره حده پوری یې د تصوف بر بیجدو او غامضو پر ابلمو نو باندی رڼا اچولی ده .

له بد د سر شده تر اوسه پوری دد ي پیاوړی شاعر د اشعا رو دیوان ډیر لمیا به او عر چاته په لاس نه شو ورتلای .

زموږ په کران هیواد افغانستان کې دلو انی دولت د اشعارو د دیوان دوی قلمی نسخی موجودی دي یوه نسخه یې د اطلاعاتو او کلتور وزارت په خطی کتابخانه کی او بله یې په غزنی کی د البیرونی په کتابخانه کی ساتل شویده .

په خارج کی هم دلوانی دولت د اشعارو د دیوان قلمی نسخی نادری او تر اوسه پوری په شمیر سره د روته رسیږی چه یوه یې د لندن په بریتش موزیم کی او دوی نوري یې د رامپور په رضالایبریري کی بندی پاتې دي.

دلوانی دولت د اشعارو دا دیوان چه د محترم مولوستونکو په مخکی پروت دي ، د اطلاعاتو او کلتور وزارت د قلمی نسخی نه زموږ ښاغلی ملګری محمد اسمعیل سرېښ ( سرېښ صاحب پخوا د ادبیاتو د څانګی مسلکی غړی و او اوس نو موړی د پښتو ټولنی لوی مدیر دی ) رانقل کړ بیا د انقل شوی دیوان داد ب او نو نکلو ر څانګی دو و تنو محترمو غړو محمد عارف غروال او عزیز الله د غزنی د البیرونی کتابخانه د قلمی نسخی سره مقابله او پرتله کړ چه دا دی تقریبا په مکمله بڼه پښتني تولنی ته وړاندی شو

د لته دا هم د یادولو وړ ده چه د اطلاعاتو او کلتور وزارت په قلمی نسخه کي د نوموړي نسخې د لیکلو نیټه او د لیکونکی نوم نه دی راغلی مګر د البیرونی کتابخانه په نسخه کی پورتنی نیمګړ تیاوی نه لیدلی کیږی .

داده د ادب او نو ألکنو ر څانګه د لوانی دولت د دیوان د لیکونکی اختتامیه متن او دلوانی د و لت د اشعارو ځینی نمونی د نوموړی متصوف شاعر د پیژندګلوی او پیژندنی د پاره په لاندی ډول لوستونکو ته وړاندی کوی.

۱ — اختتامیه‌متن: به اتمام رسید نسخهٔ معتبر که دیوان دولت بحسب فرمایش حضرت صاحب زاده بلند مکان میان نصاحب میان محمدی جیو قدس سره بدست خط فقیر الحقیر العبا د گل محمد پښتو ری بجندی تمام تاریخ هشتم‌شعبان درسنه یکهزار یکصد وهفا د چار هجری تحریر شد.

۲ — دلوانی دولت داشعارو څېړنې نمونې :ـ

ای شیخ دولته سبا تل بویه چه صفت وایې له لویه
د کمکوتی ثنا مه کړه (دادو نوحانی) زویه

په صورت د دولت پلار لوحانی سی د سا د راصل یی بزرګ سید وردلته دی پورتنی متن اوداشعارو نمونې دلوانی دولت دد یوان په کاتب ددیوان دلیکلو په نیبه او د شاعر په حال اواحوال باندې تر هغې پورې چه نور اسنادنه وی پیدا شوی په لازمه اندازه رڼا اچولی شی

په پای کی داد ب اوفوالکاو رخانګه له هغو تولو زواتو څخه چه دلوانی دوات‌ددیوان د نقلو نو. ستا بله کولو. چا پولو او دلوانی دولت په اشعارو باندې یې د څه لیکلو تالیف پر خان منلی دی د سطبعی د کار ګرانو په ګډون د زړه له کومی تشکر کوی او د دوی دې علمی او اکاډیمیک خدمت ته د قدر په ستر ګه ګوری په درناوی

څېړنمل‌دکتور سید ال شاه پولاد
د پښتو اکاډمی د ادب اوفوراکاور
څانګې لوی مدیر

# دولت لواڼی

او

## دری نیم سوه کاله پخوا د هغه عروضي نظمونه

څوک چې په پښتو ادب کې مطالعه لري هغه خبر دي چې د پښتو ژبې د نامتو شاعر خوشال خان خټک ( ۱۰۲۲—۱۱۰۰ هـ، ق ) له زیږیدنې څخه دری سوه دواویا کاله تیر سوي دي. خو په دې به لږ ښاغلي خبر وي چې کله چې خوشال خان د ژوند په داګه کې لومړی ګام ایښو، ناله د پښتو ژبې د یوه بل پښتانه شاعر عروضي شاعري خپل بها ته رسیدونکې یا رسیدلې وه او نوموړی د خپلو اشعارو د تدوین په فکر کې او یا د دیوان په ترتیب بوخت ؤ.

### لومړی

دغه عروضي شاعر چي د روښانی تحریک له غښتلو مبلغینو او تکړه طرفدارا نو
څخه شماره سي دداد الله ( ؟) زوی(۱) دولت الله‌حسن خېل لوانی دی(۲)چی سوری
ورڅ ته وه(۳).

(۱) دولت الله خان ته ویلی دي.

دکه‌کوټي ثنامه کړه
دداداو نوحاني‌زویه!

(پښتانه شعراء ۱توك ۸۷ مخ)

د پښتو په نومو کی د ادو (Dado) دداد‌ لنډه سوي‌بڼه ده مگر ددولت دپلار
نوم دده په دیوان کی داداو(Dadaw) کښلی دی که په دغه نامه لی دو هم
الف ددیوان دنقنو و نکي‌زیاتونه نه وی‌نو کیداى سی ددي لپاره چی‌د پښتو له رواجه
سره سم دپلار او زوی نو مونه پر یوه سجعه برابر وی(داداو )د(دادالله) لنډسوی شکل‌وبولو.

(۲) دولت الله خان ته ویلی دي:

اي دولته روښانی !
حسن خېله نوحانی
تل صفت د یوه وایه
تو به ګارشه له ثانی

لوانی یوه پښتنی قبیله ده چه د کسی‌غرمختیز ي‌خوا په دامان کی او سی ګندا پور
سروت او ښتې غر مه ورته پر اته دی دشما لی هند وستا ن د پښتنا نه پاچا
سلطا ن ابر اهیم لودي ۹۲۳-۹۳۲هق په وختو کی د دغي قبیلې خینو سشرا نو
د ګنګا سندپوري‌خواته دخپلو اکی پاچهی تیره کړېښوو له او د سلطا ن العادل
شیرشاه سوري (۹۴۷-۹۵۲هق) تروختو یې‌پاچهی و پائیدله . لوانی قبیله په کندهار کی
لوڼ ( Lawan)بلل کیږي، دکندهار په احمد شا هی ښار کی د لونو په‌نامه یوه
کوچنی کوڅه هم سته، په‌کندهار یولو نوکی اسلم لوڼ یو مبتکر شاعر تیر سوی
دی داسلم لوڼ دژوندانه حال او د اشعا رو نمونی دپښتانه شعر اپه دریم توك کی
راغلی دي

(۳) روښانیان د مغلو تاریکیان ۱۳۸مخ .

دوهم

دا چه مشهور انگریز ختیخ پوهاند سیجر جارج راورتی (۱۸۲۴-۱۹۰۶ع) دولت دغندو مسلمان بللی دی یوه داسی تیر وتنه ده چی د دولت په دیوان کی د دولت له نامه سره د شیخ کلمی له ذکر څخه پیدا سوی ده او د راورتی دی ته نه دی پام سوی چی پښتانه دغندو ته دنیا تو په څیر د شیخ کلمه دغند وسلمان دپاره نه استعمالوي بلکه دوی د شیخ کلمه پاخو دپیر په معنی پکار وي لکه دپیر روښان مشر زوی چی په شیخ عمر او څارو او پاپه دینو ییموکیمر یدانو ته شیخان وایی او گمان کیږي چی د دولت لوانی په هم له خپل نامه سره د شیخ خطاب په دغه ورو ستی معنی راوړ ی وي.

په خپله د دولت لوانی یو بیت چه په دغه کی بی د پیر روښان له دولتونو مشر زوی سره د شیخ خطاب راوړ ی دی د سیجر جارج راورتی خبره بیخي ماتوي، هغه بیت دادی:

نوره دین ، خیر دین ، کمالدین ، دولت شیخ

په کوښش بی خپلو ژ ای نفس ، دا فرو

د سیجر راورتی د دغی خبرې رد دا خوند درو یز په دغه بیت هم کیږي:

در ویزه شیخ وفقیر شر بعتی دی

په مذهب هم دسراج الامتی دی

(مخزن الاسلام -۸۸مخ)

د روښانی تحریک په هغو وحدت الوجودي مبلغو شاعرانو کی چی مرتب آثار او بشپړ دیوانونه څخي پاته دی زما په خیال شیر م سړی دولت الله لوانی دی، دولت الله لوانی د پښتو ژبی په ادبی ساحه کی د دولت لوانی په نامه یادیږی او د پښتانه شعراء په اومړی توک کې هم په دغه نامه راغلی دی .

د ولت الله په خپله زمانه کی د (فقیر دولت) په نامه یاد یده لکه چی په خپله وایی:

شیخ دولت الله می نومدی عا نف اینبی

پر ز بان دخلکو یا ده فقیر دولت »یم

خوشال خان غم لله چی د خپلی شاعری د زمانې په لومړی نیمایي کی

(له ۱۰۳۲ څخه تر ۱۰۷۰ ه ق) پورې (۴) د خپلې زمانې د شاعرانو په باب تضاوت کوي ، دې د (فقير دولت) په نامه یا دوي :

چې لاف وهي د شعر
نن په دادور دی ډير
خدای دې نه کاچې بهوایم
حال د دو یو تیر و بیر
څوك پاوی څوك نيم پاوي دي
قلندر پکښې نیم سیر
د مو ړ ه په حساب دی
هیڅ می نه دی و اصل هیر ( ٥ )
بل د ولت فقیر د ری پاوه
زه ترې څو شیر شاهی تیر

(دخوشحال دیوان ۳۸٦ مخ)

---

( ۴ ) ځينې کسان د خوشال خان د شاعرۍ ابتداء له ۱۰۳۴ هق کاله څخه بولي او ده په دې بيت استناد کوي

زما عمر په حساب ترشلو زيات دی
دعشق غم بهسې په لړ کاله کې زور کا

(خوشال خټك کيست ؟ - ۳۸ مخ)

زما په خيال که په دې بيت استناد سوی وای ښه به و:

په شل کاله کی دیگه زما دشعر په اوربا رشو
په دادو رمی پوخ کړ چې شپيته کاله می تللی

( دخوشال سرغلرې ۷۰ مخ )

(٥) واصل د روښانی تحریک یو بل تکړه پير او غښتلی شاعر ؤ چې د د بستان مذاهب مؤلف و رسره ليدلي دي او دروښانيانو په څېر نه کی یی دده له وينا وو څخه کته اخيستې د . دواصل داشعار ويو مبرخه ـ پر کال د پښتو ټولنې له خوا په کتابي ډول چاپ سو يده.

څلورم :

د ر د روښانی ادب له مطالعی څخه داسې څرګندیږي چې دغه تحریک هر شاعر دخاکساری د څرګندونې له پاره له خان سره د فقیر کلمه کښېله اوياېې خان ته د فقیر په نامه خطاب کاوه . دمثال په توګه ارزانی ویلی دي:

داو ینا وایم په خله
فقیر ووی په خو خله
د فقیر پښتو خبري
لکه سپینی سرغلري

مرزاخان اورسې ویلی دي:

مرزا ذوق په فقیری که
فقر ښه لو یه لمن ده

* * *

دی پخپله د خپل راز په ژبه وایی
دا فقیر مرزایې ولې په بد نام که

(ددیوان ۱۱۳ مخ)

دا فقیر مرزا ثنا د پاک الله که
په دانش چې سر بلندوي لکه شمعه

(ددیوان ۱۰۳ مخ)

کریمداد روښانی ویلی دي:

له یوه لاسه دې خال لهیوه زلفی
د فقیر زړه ګرفتار په افتین

(ددیوان ۹۰ مخ)

په کاته دي فقیر اوسی، بیا دې خان په خوغایب که
د فرهاد دحال پوښتنه ، ولی نه کړی اوس شیرینی ؟
فقیر د یرسیل دی کړی، محبوبان بې دیر لیدلی
باری تا غوندی یونه ؤ ګلعذاری ، سه جبینی !

(ددیوان ۹۱ مخ)

پنځم

## ددولت‌دزوکړی کال:

د پښتا نه شعراء په لوسړي توك کی‌ددولت‌د زو کړی وخت د زرم هجری کا ل‌شا وخو ا اټکل سو يد ی.

خو ځکه چی له بو ي خو ا دولت پخپلو اشعا رو کی ځا ن د پیر روښا ن (۹۸۰ ه ق‌مړ) مريد ښرگند کړی‌دی اوله بلی خو ا ددولت په نا مه د پیر روښا ن يو خليفه هم سته (٦) اوسر بيره پر دې د بايزيد روښا ن په (۵۵ مخ) او د روښا نيا ن په (۹۲ مخ) کی د غه‌خليفه‌دولت اودولت لو انی شا عر يو بلل سو يدی نو ما ته دااټکل لږ څه د ښيرنې ور ښکا ری‌په‌دی‌دول:

د دولت لوانی په ديو ا ن کی راغلی دی:

پیر روښا ن لکه ملاح مدد يې راکړ
په‌گرداب کی‌می زورق ؤ په‌دانن‌شپه

* * *

معنوی روښان خو رشيدبله‌دیو ه ده
دافقیر دولت دې ځارشه له د يدنه

* * *

چی دا سی د معرفت ځنی حا صل شو
پرمسکين با زيد به و ايمسلام زه

* * *

که‌پیرا ن په‌جهان‌هر ځو ډیر دی‌څه شو؟
په اسرا ر د روښان نشته برابر يو
لکه دی د طا لبا نو رهبري کا
په‌جها ن کی‌هسی نشته بل رهبر يو

---

(٦) د خيرا لبيا ن د مقدمی په (۲٦مخ)، اودر وښانيا ن اودمغلو تاريکيان په (۹۲مخ) کې د حالنامی په حواله کښلی دي:

« د پیر روښا ن يو خليفه دولت نو ميد . ده په لاس بي خپل يو کتا ب « صرا ط التوحيد » د خپل مسلك ديو ه تبليغی پيغا م په‌توگه ددهلی مغل پاچا جلاالدين اکبر (۹٦۳ — ۱۰۱۴ ه ق) ته‌ولیږ ه . »

د کلام تأثیر یې گو ره اتبارو کړه
دی تحقیق د نو ر مظهر د ی د سرو ر یو
دیر بیشما ره سر به بیا مومی دولته !
که د ده په امر وبا زې خپل سر یو

---

زه فقیر دولت سر ید د سیا رو بنا ن یم
له فیرا که به یې نه کا پم اسا ن لاس

نه څه هم د دولت د دیوان له مطالعې څخه څرگندیږی چې دولت له روښانی مبلغ د دیوان ته پښتن شاعر علی محمد مخلص (۷) او د پیر روښان د لمسی او پیا وړی وحدت الوجودي شاعر میرزا خان انصاری (۱۰۳۰ هـ ق سر)

---

(۷) دولت د مخلص په مرثیه کی ویلی دي :

غم دید ه زړه می مجزون شو
په مخلص یار پسی خون شو

بل ځای وایی : بی میرزا، بی ارزانی، بی مخلص یاره
بل شاعر برابر نه دی پښتون ستا یو

دولت د مخلص یو بیت داستعانی په ډول داسی تضمین کړیدی :
همه دان مخلص دولته !
ددی دروږه سفتن دی :
«چې تر سر و مال تیر نه شی
دعشق لاف کاد رو غژن دی»

(۸) میرزا خان انصاری د نور الدین زوی د پیر روښان لمسی دی دولت دده په باب ویلی دي :

سر زا گنج راته خپل کو روښو غنی شوم
بی هو ده منت به ولی د بل چاوړم

---

د میرزا د نور الدین صفت یې څو کړم
میا روښان د پو هی شهر د ی یې ورو
دها دي په زړه چې پټ ؤ په دیر کاله
د میرزا خوله د هغه علم مظهر ؤ

خخه ر و حا نی ، مسلکی اوادبی استفا ضه کړ ید ه ، مګر دده پو ر تنی بیتو نه‌له‌ورا د د ېشاهدي لي ، چی د ه په‌نیغه( مستقیماً ) د پیر روښا ن د ر و زنيفیض‌مو ند لی‌د ی کله چی د و لت د پیر ر و ښا ن بې و ا سطې مر ید و ما نه سي نو دا لا زمېږی چ عمر بې هم باید د پیر روښا ن د مړینی په وخت (۹۸۰ ه ق) کی لږ ترلږ ه شلو، پنځه ویشتو کا لو په‌شا وخو اکی و تاکو او په‌دی حسا ب نو د دولت زو کړې وخت نو رهم څلو ېښت ، پنځه څلو یښت کا له دمخه کیږی ا و د ۹۶۰ یا ۹۵۵ ه‌ق کا ل شا و خو ا باید وټاکل سی، چی د خوشا ل خا ن د ز کړ ی په‌وختو (۱۰۲۲ ه‌ق ) کی د د ه عمر څو شپیته کا له تخمینیږی

مګر داچی خوشا ل خا ن دی پخپلو معا صر و شا عر انو، کی ر اوړی د ټ کید ای سی چی د خوشال‌خان د ځوانۍ بها ر او د شا عر ی لومړي کلونه ددول دعمر له‌ځز اناو ورو ستیو کلوسر ه مخامخ‌سوي وي .

بله توجیه بی داهم ده: د بایز ید پیرروښا ن تلقین داؤ چی په زمانه ؟ یو کا مل پیروي ، ځکه نوچا چی دده له خلیفه ګا نوڅخه د خلافت خر مو ندلې وه هغه‌به‌هم دده خلیفه‌ګا ن بلل کید ه (۹) او دغه رازدده دمأ ذو تا مر ید انو به هم ځا نونه دده ر و زلی شما رل لکه کریمدا د روښانی(تر ۱۰۲۸ هو ورو سته زوکړی ) چی ویلی د ی:

کر یمد ا د حکمت مو ند لی
له روښان د دین سقرا ط

(د د یوان۹۶مخ)

ښایی چې دولت به‌هم ددغه تعا مل اوتما یل په اغیز ه ویلی و ی :

«زه فقیر د ولت مر ید د میا روښا ن یم»

## ددولت‌د مرګ کا ل :

د دولت د مړینی کا ل نه دی څرګند ٠ مګر د میا روښان دلسی رشید

---

(۹) وګو رئ : د خیر البیا ن مخدمه ۳۷ مخ.

خا ن الهداد انصاری (۱۰۵۸ ه ق مړ) (۱۰) مرثیه دده ژوند تر ۱۰۵۸ ه ق کاله پوري یقیني کوی چی د دغه کال شاوخوا دخوشال خان دعمر له اواسطو سره برابریږی .

دولت د رشید خان الهداد انصاری په ماتده کی و یلی دي :

په یوه آه یی ارواله تنه بیل شو

په تاریخ دغین ونو نحی بی سفرؤ (۱۱)

۱۰۵۸

## ددولت تاتوبی :

دپښتانه شعراء په لوسري توکڅ کی دد ولت تاتوبی په احتمالی دول سره «رشید آباد» بنو ولسوی او فاضل مؤلف ددولت له دغو بیتو څخه دااستدراک کړی دی:

په «رشید آباد» به عید شی که یو ځل بیا

د دکن په سفر تللی یاران راشی

(۱۰) الهداد دجلال الدین (۱۰۰۹ ه ق مړ) زوی، دمیا روښان لمسی و، لومړی وار په (۱۰۲۶ ه ق) کال دشمالی هندوستان پاچا مغل جهانګیر (۱۰۱۴ ه ق ـ ۱۰۳۷ ه ق) ته ایل سو، جهانګیر د رشید خان خطاب ورکړ زوی او وروریې برمته څنی وګرزول او دی یې دبنګښو له مغلی حاکم (مهابت خان) سره بیرته «روه» ته رخصت کړ، الهداد په ۱۰۲۸ ه ق کال بیا مغلوته پورته سو، ترماتی وروسته جهانګیر له هندوستان ته وروستل سو، جهانګیر بیا و نازاوه منصبدارئی کړ او په دکن کی یی د جنګیدو نکومغلی لښکر و په مرسته دهندوستان جنوب ته ولیږه ، الهداد دمغلو په نوکری کی خلو رزری منصب ته ورسیده (وګوری، تزک جهانګیری ۱۹۲، ۲۷۱، ۲۹۰ مخونه؛ مآثر الامراء ۲/۲۳۸ مخ)

(۱۱) دبایزید روښان د کتاب په ۵۶ مخ کی د رشید خان دمرګ تاریخ ۱۰۶۸ ه ق راایستل سوی دی مګر دااستخراج سم نه دی او د مآثر الامراء ۲/۲۵۱ مخ او د دبستان مذاهب د ۳۱۱ مخ تر لیکنه څخه لس کاله زیات دی چی یوه (ی ـ ۱۰) په تاریخی ماده کی بې ځایه زیاته سوید .

دقا در په قدرت هیڅ مشکلات نه دي

چی «رشید آباد» ودان ؤ هسی بیا شی

داچی رشید آباد چیری واقع دی په دې باب دپښتانه شعراء پهلوسړی ټوک کی ۸۰ تفصیل نسته ، ، د مآثر الامراء د دوهم ټوک په ۲۵۰ مخ کی صمصام الدوله شهنوازخان کښلی دي:

"رشید خان (الهداد روښانی) دمئو په شمس آباد کی یو کلی ودان کړی ؤ ، باغونه یې جوړ کړی وو . کله چې دی په ۱۰۵۸ ه ق کال د ناندیر په صوبه داری کی مړ سو ، دده مړی یې دغه کلی ته راووړ او هلته یې ښخ کړ»

د صمصام الدوله ذکر کړی شمس آباد د شمالی هند وستان په اترا پر دیش ( UP ) ایالت کی دګنګا دسیند پرغربی غاړه باندی د اوسنی فرخ آباد په سیمه کی د یوه ځای نوم دی چی پخودا « منو » نومی سیمی له مضافاتو څخه شمیرل کیده او د دولت لوانی ذکر کړی رشید آباد دغه شمس آبادته څرمه پروت ؤ .

کریمداد روښانی هم پخپلو اشعارو کی شمس آباد او ګنګا رشید آباد ته څرمه ذکر کړی دی:

دریغا سیر ګلګشت رشید آباد می خواهم
تماشای پر یرویان شمس آباد می خواهم

می ومعشوق ګلرخسارو آواز خوش مطرب
کنارګنګ وسرو وسوسن آزاد می خواهم

په حالنامه کی هم د رشید خان دښخید لو ځای صریحاً رشید آباد ښودل سوی دی هلته یې کښلی دي :

« چون خانصاحب (رشید خان) صوبه دار اورنګ آباد بود ، درحویلی خود باغی خوب داشت (وی را) دران باغ دفن کردند ...

آخر بعد از چند ګاه نعش خانصاحب راازآن جاکشیده به رشید آباد آوردند ورشید آباد از مقدم مبارك شان ازسر نو آبادانی ګرفت.

لسم

وخیلخانه ها وفرزندان پیر دستگیر وازمردم روشنایی که بدکن رفته بودند باز آمد، دررشید آباد ساکن شدند و این شهر ویران بی رونق راازسر نورونق دادند.»

دحا لنامی‌یو بل مثنوی هم ددې سطلب داسې ملاتړ کوي :

روضه اش و اقع شده بر بحر گنگ
لنگرش دایم‌روان بر کورولنگ
بیش ازین دریا ازین جارفته بود
در ته این شهر اندك ماننده بود
خان همی می خواست‌درحین حیات
تاببارد با زا ین بحر حیات
لیکن مقصودش بر آمد بعد موت
در ته اقدام آن شه باز رفت

دلته داخبره دیا دو لو وړ ده :

رشید آبا د ددولت لوانی هغه ټاټوبی دی چې غالباً تر ۱۰۲۸ هق کال وروسته له‌رشید خان الهداد روښانی اونورو روښانیا نو سره دی هلته میشت سوی دی تر رشید آباد دمخه بې په روه کی دتا توبی تاکل گران غوندی ایسی .

### ددولت مذهبی عقیده:

په روښانیانو پسې مخالفا نو دالحاد دېر تورونه‌لگولی‌دي خینی‌یې اباحتیه‌بولی‌خینی‌یې حلولیه او خوك يې دتناسخ .ملو په‌تومت کانرانوی‌اوخوك يې بیادنبوت‌ددعوی په‌توریه‌وژلو ثواب گنی.
پښتا نه وایی : « خو مره خو لې هو مره خبری » ، راسی ده! دخلکو خبری یوی خواته کښیږدو . بو وار ددولت روښانی مذهبی عقیده دده پخپلو اشعا رو کی ولټو واو گورو چې دده له خپلو وینا وو څخه راوزی ؟

دده خپلې وینا وې دادي :

**يوولسم**

ددولت دغه چاپي دیوان۳۸۲ غزلې (۳۶) قصیدې(۱۱) رباعیات

او( ۳ ) مثنوي ګاڼې لري .

دغه دیوان دغې قلمي نسخې له مخې خخه چاپ سوی دی چې دېر کلونه دپښتو ټولنې په کتابخانه کې خوندي وه ، بیایې دمطبوعاتو په کتابخانه او وروسته یې دعامه کتابخانې په قلمي خانګه پورې اړه ور کړ شوه .

ددولت دیوان یوه بله قلمي نسخه په ۸۲۲۳م کې په برتش موزیم کې ساتلې ده ، دانسخه دخوشال خان تر سرپنې یو کال وروسته په ۱۱۰۰ هـ ق کال نقل سوېده م(۱۱)

له دې خخه څرګندېږي چې دیوولسم هجري قرن پای ته ددولت ددیوان مطالعې د پښتنو په ادبي حلقو کې ښه رواج موندلی ؤ . او دذوق تښتنا نو یې نقلونه اخیستل پښتنو شاعرانو یې دغزلو په اقتفاء اشعار ویل او تضمینونه یې ځنې کول دمشهور صوفي شاعر رحمان باباچې دخوشال دمرګ په وخت یې ادبي شهرت عروج ته نژدې سوی ؤ، داتضمین دغه مدعا ښه ثابتوي:

چې امید په عمارت ددې دنیا کا

دکاغذ په کښتۍ سیر دد ریا کا

داجواب «رحمان» هغه کاچې «دولت» وي :

« که دلبر د دیدن مې پیاپی را کا »

(د دیوان ۳۱ مخ)

ددولت ددیوان دوې قلمي نسخې د را مپور په رضالا ئبریرۍ کې هم سته دغه لائبریري دهندوستان داترا پردیش ( UP ) دایالت په رامپور نومي ښار کې واقع ده ، چې دپخواني روهیل کهند مرکز ؤ او هغه وخت د «آنولې» په نامه یادیده . (۱۲)

**ددولت دوېنا نمونه:**

هغه کس چې نورهمت بلند پروازدی

دوفا طمعه یې نه کاله کرد ونه

پخپل حکم یې په هرلوري جارباسي

چې په خوله یې کره خناس دطمعې ملونه

---

(۱۱) پښتانه شعراء لومړی ټوک ۹۱ مخ .

(۱۲) رضالا ئبریري درامپور بریخې نواب رضاعلي خان (۹ ۱۳۳–۱۳۸۰ هق ) ته منسوبه ده، دیار لسم .

دد یذن له ذوقه خکه‌یی نصیب شول
په دنیا پسی پریشا نه یې سکو نه
دوحد ت دباغ په سیل و تای نشی
په‌سرداري‌پاندي‌بندلکه‌و راغو نه(۱۳)
دجها ن په طبیبانو به روغ نه شی
چی‌په‌زړه یې‌دآزو لي‌دم‌زرغو نه(۱۴)
ناتما م سرشد دهر مسلم دښمن دی
خلقه یې فریفته کړه په مکر و نه
د نا دا نو و خصلت و ته عجب یم
چی‌په‌جسربا ندی کړي دي کورو نه
نه همت د تنو تکل دوخته نه کا
په خرگند ورخته نمی دلاری سلو نه
دزړه حال په زبه هیڅ ویلای نشم
داخراب خاطرسی خوږدی له‌بیلتو نه
درد، محنت‌دعارف‌زړه‌هسی‌روښان کا
لکه نمري صا فی سو سی له صا بو نه
د فقیر د و لت په زړه بیغمی نشته
غیب دان صاحب خبر دی له‌درو نه

(۱۳) وراغ - کارغه، کارگه .
خوشال خان و یلی دي :

یو بنه‌باز یې خپل بابالره رانه غی
د«اشرف» سرغی که‌بردی‌ترورغو

(ددیوان ۲۲۰ ، مخ)

(۱۴) آز- حرص .
اشرف خان هجری ویلی دي:

دتن شاه دی و زیران اری د ښکه
یو ته عقل وا یی خلک بل ته آز

(ددیوان ۲۳۴ مخ)

نحو را سم

رب یا رب زماسبق ؤ په دانن شپه
له ژوندونه می رمق ؤ په دانن شپه
هسی سخته لارېږي تلمه په تیاره کی
مهربان رفیق می حق ؤ په دانن شپه
پیر روښان لکه ملاح مدد یې راکړ
په ګرداب کې‌می‌زورق‌ؤ په‌دانن‌شپه(۱۵)
نوره شپه می لکه ورځ هسی‌رڼاکړه
د آشنا دمخ رونق ؤ په دا نن شپه

انسانه !

أي عجب په صورت‌ښکله موزون‌یې
آئینه د حق یې مثله بې چګون یې
په فی احسن التقویم په قرآ ن یا دیې
هسی نه چی نورحیوا ن په شاني دون یې
خدای کریم په پیر عنایت‌دربانديې کړی
درست‌په‌لاس دقدرت‌روغ درون بیرون‌یې
ستا په شا ن صورت بل‌نشته په جهان کی
ته انسان خبر له لوی علم لدن یې
وارہ دی ستا له طفیله پیدا شوی
په‌تحقیق‌دمخکی‌نور، څراغ د ګردون‌یې(۱٦)

(۱۵) زورق – کوچنۍ کښتی، کمکۍ بیړۍ .
کریمداد روښانی ویلی دی :
دعظیم دریاب په‌مخ یې دی جار بلمی
پخپله حکم دزبون لرګی زورق م
(ددیوان ۳۳مخ )

(۱٦)دڅراغ کلمه دلته بوه رجحایي ده . .

زړه پر ښتو ستا و باباته سجده کړي (۱۷)
د غه عیبي بختو ر سعید بیمو ن بي
ترتابه به پیدا یش کی وجود نشته
نه لوی پیر کامل دهر چار همنو ن بي

## د دولت د شاعری روح:

دولت روښا نی شا عر دی ، د روښا نیانو د شا عر ی روح دو حدت او یقین (باو ر ) تبلیغ او دشرك و گمان (پند ار او شك) . غند نه ده ، ددوی وحدت د اتحا د ، تر نیت او حلو له بېزا ره دی او خلا ( بعد منظو ر ) رو ح ، او زما نی ته دخدای په ستر گو نه گو ري . ځکه نو وايي : .

د توحید و ینا مي شنو ه پر زړه نز وله
سمبرا ده له اتحا د هم له حلو له

دغه راز د روښا نیانو یقین دایما ش په دتوت سر ه عیان لید ه دی ، عا رف چې د توحید مقا م ته و رسی نو بیا ته چې گو ري ذ (فاینما تولوا فثم وجه الله) نند ا ره و رته بر ښتې او هر لو رته چې غو ږونیسي د « انا اقر ب الیه من حبل الو رید » ا ز انگې بې تر غو ږ د کیږ ي ، ځکه نوشیخ فر ید ا لدین عطا رو یلی د ي :

چو ن یکی باشد همی نبو د دو یی
هم منی بر خیز داین جا هم تو یی

اومو لانا جلال الدین بلخي نا ري و هی:

ای قوم به حج رفته کجا ئید کجا ئید !
معشو ق همینجا ست بیا ئید بیا ئید !
معشوق تو همسایه د یو ا ر به د یوا ر !
در بادیه سرگشته شما درچه هوائید ؟

---

(۱۷) پر ښتو کلمه دلته دوې هجایي ده .

شپا پسم

گر دو رت بی صو رت معشوق یقنید
هم خواجه و هم بنده ، وهم قبله شمائید
گر قصد شما دیدن آن کعبهٔ جان است .
اول رخ آئینه بصیقل بزدائید

دولت لوانی دغه مطلب داسی بیانوی:

د یقین په نظر یو راته ښکاره شو
له اوله چې سی شو لئ په نظر سل کوت
چې خبر نن له مقامه د تو حید دی
هغه کس د سکمال کامل مرید دی
له تو حید ه به خبر شی بی گمانه
چې په نغوته د روښان مسکین بایزید دی
چه یقین د کاملانو په گفت ته که
هغه لوی مشرك گمراه، بدبخت عنید دی
مشرکان نه « نحن اقرب » خبر نه شو ه
حق وهر چا ته نژدې « حبل الورید » دی
د خو دیین سترگې ړندې دې نه یې وینی
داسی نه چې حق غائب شو ناپدید دی
ددې حال گواهان حسن ، بایزید جنید شوه
ملاروم ، شمس تبریز ، عطار فرید دی (۱۸)

---

(۱۸) حسن ، خیر التابعین حسن بصری چې په ۱۱۰ هـ ق مړ اوپه بصره کې ښخ دی .
بایزید — سلطان العارفین بایزید طیفور بسطامی په ۲۶۱ هـ ق (؟) کې مړ اوپه بسطام کی ښخ دی ، طیفوریه طریقه ده ته منسوبه ده .
جنید — سید الطایفه ابو القاسم جنید بغدادی چې په ۲۹۷ هـ ق کال مړ اوپه بغداد کې ښخ دی ، جنیدیه طریقه ده ته منسوبه ده . حسین بن منصور حلاج چې په ۳۰۹ هـ ق کال په بغداد کې ووژل شو ، د جنید له مریدانو څخه ؤ .
ملاروم — مولانا جلال الدین بلخی رومي چې په ۶۷۲ هـ ق د ترکی په قونیه *

مغربی ، سعدی حافظ جامی ، خاقانی (۱۹)
ارزانی ، میرزا ، مخلص ، احمد ، سعید دی (۲۰)
چې یاری هرڅوک لەدە غواړي د ولته !
محمد رسول د دو وکو نوعمید د ی
د وحدت مقام مکان د مو حدانو
یا د ول په هر یو اسم کیل اسمونه
په قعری د ریاب چې ګډ شي یو یسا د بیری
په جهان که هر څو ډیر دي د ریابونه

---

* کی مراوهلیه ښخ دی، مولویه طریقه چی د کبو ر په طریقی یو مخانګه ده ، ده ته منسوبه ده.
شمس تبریز — د مولانا جلال الدین بلخی له ملګرو و څخه و ، عرفانی اسرار یې څرګند ول ، په ۶۴۵ ه ق کال په قونیه کی و وژل شو.
عطار فرید — شیخ فرید الدین عطار د تذکرة الاولیا ، منطق الطیر او نورو مؤلف په ۶۳۷ ه ق کال مغلو ووا ژ ، په نیشا پور کې ښخ دی.
(۱۹) مغربی — مولانا محمدمغربی ناثینی د شیخ محی الدین ابن عربی له منسوبینو څخه یې دخلافت خرقه مو ندلې وه، له شور دولت شعرونه یې ویل، په ۸۰۹ ه ق کال مړ دی.
سعدی — شرف الدین مصلح بن عبدالله سعدی شیرازی چې د ۶۹۱ او ۶۹۴ ه ق ترمنځ مړ او په شیراز کې ښخ دی
حافظ — شمس الدین محمد حافظ شیرازی چې په ۷۹۱ ه ق مړ او په شیراز کې ښخ دی.
جامي — مولانا نورالدین عبدالرحمن جامی هروی (۸۱۷ — ۸۹۸ ه ق) په هرات کې ښخ دی.
خاقانی ـ افضل الدین بدیل بن علی شروانی آذربایجانی چې په ۵۹۰ ه ق کال مړ او په تبریز کې ښخ دی.
(۲۰) ارزانی — روښانی شاعر ارزانی د برهان خان قصوری خویشکی زوی چې تر ۱۰۱۰ ه ق پورې یې ژوند یقینی دی.
مرزا — روښانی شاعر مرزاخان او رمړ چې په ۱۰۲۰ ه ق کال په دکن شهید شو.
مخلص ـ روښانی شاعر علی محمد مخلص.
احمـــــــد ؟
سعیـــــــد ؟

الله اسم

## ددولت عروضي اشعار :

پښتو نظمونه چه په عروضي میچ تللې کیږي ، زیاتره پر سیلابو تونیك (هیجایي) شمار او سیستم برابر څیږي . مگر په پښتو ادب کي داسي نظمونه هم سته چي د خلیل بن احمد فراهیدي او دهغه د پیروانو مستخرج سیستم باندي برابر راځي ، زه د خلیل بن احمد عروضو ته رکني عروض وایم او رکني عروض زما د څیړني لهمخه په پښتو ادب کي تقریباً څلور سوه کاله سابقه لري څوك چه په پښتو منظوم ادب کي څیړني کوي ، هغه د پښتو پر رکني عروضي نظمونو هم پیښیږي او مجبور یږي چه څه پروړ غیږي .

په دې لړکي ما د ( ږوږمې ) د ۱۳۴۰ ش کال په یوه گڼه کي د عبدالعلي اخند زاده شاکر ( ۱۲۹۹-۱۳۶۵ ه ق ) پنځه غزلي له رکني عروضو سره سم تقطیع او څیړلي کړي (۲۱) تر دې یو کال دمخه هم د نوموړې ږوږمې په مجله کي د یوه بل پښتانه شاعر شرف د رکني عروضي نظمونو په باب زما یوه مقاله خپره شوې وه (۲۲) په دې مقاله کي ما د شرف شاعر دری غزلي پهیوه رکني عروضي سیستم تقطیع کړي او څیړلي وې .

د دغو دوو غزلو رکني تقطیع ته د شرف شاعر دې بیت زما پام را اړولی و :

فاعلاتن فعلاتن فعلاتن فعلن

ستا که باور په کلام شي د شرف کم دی هنر

واخله میزان د عروضي راپسې هر حرف وتله

دشرف شاعر د رکني عروضي غزلو له نوندلو سره د پښتو رکني نظمونو سابقه دوه سوه کاله قدیمه شوه ځکه چي نوموړی شاعر د دستر نوالو اك غازي لوی احمد شاه بابا معاصر و .

مگر ددولت لواني د رکني عروضي غزلو پیدا کیدلو داسابقه نوره هم زیاته کړه او د زونیمو سوو کالو ته یې ورسوله .

---

(۲۱) وگوری : د ږوږمې مجله د ۱۳۴۰ ش کال د قوس او جدي گڼه.

(۲۲) وگوری : د ږوږمې مجله د ۱۳۳۹ ش کال وروستي گڼه .

د «دولت» درکني عروضي غزلو موندل دخوشال خان دا اد عا چې په په ۱۰۹۵ ه ق کال یې پخپله یوه غرا قصیده کې کړیده هم ماتوي د ی وایی :

بند و بست دپښتو شعر ما پیدا کړ
کنه شعرد پښتو وغیر سیال (۲۳)
نه یې وزن نه‌تقطیع نه‌یې عروض ؤ
دومصراع یې‌دحفیف بحردوه‌تال(۲۴)

(دخوشال خان مرغلرې، ۶۰۷ مخ)

«دولت» درکني عروضي غزلو په تنظیم کې عروضي بحراو وزن ته خاصه توجه لرله او دده دابیت دې مطلب ته صریحه اشاره کوي :

« داوزن دی‌صحي یې وکړه نظر    فاعلاتن مفا علنْ فعلات »

دادي دنوسوړي دغزلو په رکني تقطیع لاس پورې کوم او (نه) غزلی یې ترعروضي څیړنې لاندې نیسم:

(۱)

داجهان دی عجب په مثل بهار    مرګ‌وبیلتون‌پسې خزان لکه خار
دمنافق دي‌بد خو یونه څلور    خو د نما یی، کبر، حسد، انکار
بیوفایی ظلم، فساد که په‌ځان    نفس نا قص، لئیم، بخیل، بد کار
څوك تفاوت نه کامګر یو، یو    پاك ومشکوك، پلید، حرام، مردار
په قناعت، صبر عزیزشي سړی    په حرص‌ناصبور وي تل دپرخوار
ځای یې دوزخ‌شه جاودان‌پیشك    چې که نا حق ستم، دد ل آزار
توله د نیا دحق په نزد لا شی    ور که نادان په‌هیڅ دروح ګلزار
دیرعنایت کوي په هر مؤمن    خد ای قادر، کریم، رحیم، ستا ر
غواړي هر یوعطا له رحمه دده    ځینی د نیا ځینی بهښت ود یدار
نا اهل کم اد ب سړی لکه اور    و قنا ربنا عذ ا ب ا لنا ر
چې «اناالحق»ظهورووې منصور    په ملا ست یې کړ غر یب پر دار

---

(۲۳) داکلمه په‌اصل کې(سال) ده (؟)

(۲۴) ددې قصیدې‌دو یلو کال خوشحال خان داسې راوړی‌دی :

نوی سیا شت‌د..حرم(غصه)یې‌کال‌دی    په غلیم سې‌غصه‌وریژه‌دا کال (۱۰۹۵).

ښلام

پاك خالق ته هر صباح ، بيگاه
سجده کالمر ، قمر ، فلك ، اشجار
يو حقيقت ته جا بجا ظاهر
دير و مسجد ، کنشت په هر بازار

داروبي نشته بې د يدن هر گز
داد «دولت» دعشق په تير افگار

(۲)

چی لعل لب بی دي ځکلی دده
څه بی حاجت ، غرض په آب حيات
په قلم کښلی خطبی گوره عجب
په ښه عارض رقم ، له غيبه دوات
زنده دل زده قدرد يارد مخ
څه خبر دی په دار سوزا سوات
په سبب بل به غاړه نکړي ادا
چی مگرور که جان و تن بې زکات
چی دور کړ وفکر بې نکړي دځان
څه خبر يی په تا د چا شی برات
هر عبادت چی که په خود بينی
دا نه طاعت مگر چی دی سيئات

دښه دلبر صفت له دير و(څه) لږ
وايی «دولت» فقير په دا ابيات
داوزن دي صحی يی وکړه نظر
فاعلاتن (۲۵) مفاعلن فعلات

دا دواړه غزلی چی لومړي يی «څورلس» اودوهمه يی «اته» بيتونه لري په شپږ يزسپك «مسدس خفيف» بحر کی ويلی سوي دي ، چی سالمه ښه يی داسی ده:

فاعلاتن ـ مستفع لن ـ فاعلاتن (۲۶)
فاعلا تن مستفع لن فاعلا تن
:

دابحر چی په رکنی بحرونو کی ترټولو سپك بحر گڼل کيږي ، سالم وزن يی مطبوع اومستعمل نه دی ، بلکه مزاحفو شکلونو يی زيات رواج اوقبول موندلی دی ، ځکه نو پښتانه شاعر «دولت» هم خپلی دغه دوې غزلی په مزاحف وزن کی ويلی دي ، دده په غزلو کی « مستفع لن » چی دبيتونو په حشوه يعنی دوهم او پنځم رکنو نو کی

---

(۲۵) په قلمی نسخه کی «فعلاتن » کښلی دي .

(۲۶) د «مستفع لن» رکن وتد په خفيف بحر کی مفروق وي .

(شرح محمد بن علی الصبان ، ۱۰۳ مخ )

يوويشتم

راغلی دي مخبون شکل لري يعنی درکن دوهم صحیح ساکن توری (س). غورځيد لی دي چی (متفعلن) ځنی جوړسوی او بیا (مفاعلن) ته اوښتی دی (فاعلاتن) چی په عروض (دریم) اوضرب (شپږم رکن) کی واقع دی لومړی مقصورا و بیا مخبون سوی دی دقصر په اغیزه یې وروستی نون «ن» غورځيد لی او تر «نون» دمخه «تی» ساکنه سویده چی (فاعلات) ځنی جوړسوی او بیایې دخبن له امله لومړی الف غورځيد لی دی او «فعلات» ترې پاته دی.

ددغو اوښتنو (تغیراتو) په اغیزه ددې غزلو وزن شپږیز «مسدس» مخبون مقصور خفیف بحر نومل کیږي، چی ارکان یې داسی باید واوړل سی:

فاعلاتن مفاعلن فعلات

فاعلاتن مفاعلن فعلات

پارسي مثال يې:

| | | |
|---|---|---|
| زلف هارا | بتان چوتا | بدهند |
| فتنه راآ | گهی زخوا | بدهند |

داوزن شرف الدین عبدالقهارسمرقندي «۸۹۶ ه ق مړ» دخپل کتاب: میزان الاوزان په «۵۷مخ» کی دخفیف بحر لهخوندورو «سطبوعو» وزنونو څخه بللی دی، د نظامی گنجوي (هفت پیکر) دابوالحسن امیرخسرو بلخی دهلوي هشت بهشت (۲۷) دحکیم ابوالمجد سجدود آدم سنایی غزنوي حدیقه (۲۸) دمولانا نورالدین عبدالرحمان جامی هروي سلسلة الذهب (۲۹) دشرف الدین نام حق او نور په دغه وزن کی ویل سوی دی. دلته د اباید وویل سی چی زموږ دپښتانه شاعر د لومړی غزلی په پنځه ویشتو ځایو او دد وهمی غزلی په لسو ځایو کی داخلو رازه تغییر پیښ دی:

---

(۲۷) د«هشت بهشت» مثنوي چی دنظامی گنجوي دهفت پیکرپه ځواب کی ویلی سویدی په ۷۰۱ ه ق کال نظم سوی دی.

(۲۸) حکیم سنایي دحدیقی له نظم څخه په ۵۳۰ ه ق کال فارغ سوی دی.

«پانصدوسی وچار رفته زعام پانصدوسی و پنج گشت تمام»

(۲۹) د سلسلة الذهب لومړی دفتر په ۸۷۷ ه ق دوهم په ۸۹۰ ه ق او دریم ترهغه وروسته تنظیم سوی دی.

دوه ویشتم

۱- فعلاتن : چې د «فاعلاتن» مخبون شکل دی په لومړی غزله کې یوځای دبیت په صدر« لومړی رکن» او دوه ځایه په ابتدأ «څلرم رکن» کې واغلی دی په دو همه غزله کې فقط یوځای په صدر کې لیدل کیږي داراز تغییر یو مطرد او جا ئز تغییر دی دلسان الغیب شمس الدین حافظ شیرازي په کلام کې یې مثالونه دادي :

فاعلاتن ـ حال دل باتو گفتنم هوس است

فعلاتن ـ خبر دل شنفتنم هوس است

فعلاتن ـ طمع خام بس که قصهٔ فاش

فاعلاتن ـ از رقیبان نهفتنم هوس است

۲- فعلن ـ چې د «فاعلاتن» محذوف مخبون شکل دی، په لومړی غزله کې دوه پلاو په دو همه غزله کې شپږ واره په عروض « دریم رکن» کې راغلی دی، په معراج العروض کې دداسې تغییر دجواز فتوی کښلې ده ؛دحافظشیرازي په کلام کې یې مثال دادی.

از برای شرف بنوك مژه ـ فعلن

خاك راه تو رفتنم هوس است ـ فعلان

۳- فعلن :- چې د «فاعلاتن» مشعث محذوف (۳۰) یاد ځینو په قول اصلم (۳۱) یا مقطوع (۳۲) یاابتر (۳۳) شکل دی، په لومړی غزله که شپږ ځلې او په دو همه غزله کې پیلا په عروض کې لیدل کیږی، ددې جائزاو مطرد تغییر مثالونه دحافظشیرازي په کلام کې ولولئ :

وکه د ردا نه چنین نا زك ـ فع لن

در شب تا رسفتنم هوس است ـ فعلان

برخ سا قی پرې پیکر ـ فع لن

می خروشو بنوش با ده ناب ـ فعلان

۴- فعلان : چې د «فاعلاتن» مشعث مقصور (۳۴) یا اصلم مسبغ (۳۵) یا مقطوع محذوف مسبغ (۳۶) یا ابتر مسبغ (۳۷) شکل دی . دلومړی غزلی په ضرب «شپږم» رکن

---

(۳۰) (۳۳) رسالهٔ معراج العروض، قواعدادبیه ۱۹ مخ .

(۳۱) (۳۴) تحقیق انتقادی در عروض فارسی ۱۲۹ مخ ـ میزان الاوزان ۵۷ مخ .

(۳۲) (۳۵) د چهار گلزار ۳ گلزار ۹۲ مخ ـ ۸۰ مخ ،عروض سیفی ۳۶-۳۷ مخونه ـ معیارالاشعار .

(۳۶) (۳۷) محیط الدائره ۱۲۳ مخ ـ معراج العروض .

ذولس واره او په‌عروض«دریم رکن» کی‌دوه پلالیدل کیږی ،داز خاف ددوهمی غزلی په ضرب (شپږم رکن) کی هم دوه محایه پیش دی .ددې جائز او مطر دتغییرمثال د حافظ شیرازي په کلام کی ورا ندې کوم :

| | | | |
|---|---|---|---|
| | اې صبالم | شبم‌مدد | فرمای۔ فعِلان |
| | که‌سحر گه | شگفتنم | هوس است۔ فعِلان |
| فلاعلاتن ۔ | هر گل نو | که شدچمن | آرای ۔ فعِلان |
| فعلاتن ۔ | اثر رن | گ‌صح | بت‌اوست ۔ فعلا ن |

ددغودوو غزلو تقطیع په لومړي او دوهم جدول کې وګورئ :

(۳)

هر نفس هر زمان په لیل و نهار
جلوه‌ګر دی خفی ،جلی دلدار

مخ یی دی بې فنا ، بقاخورشید
پاك و نازك‌بدن ،لذیذ ګفتار

د لبري کا په زلف و خال ابرو
په کرشمه کبر په کج رفتار

باغ کامل شه میوه‌پر رنګ‌رنګه
خوندوبوی ګوینی وي دهر اثمار

صاد قان عا شقان له شوقه دده
هر نفس څښی دغم شرا ب ناچار

تول‌عالم دعشق‌په‌می مست دی
خار و خس د ا دغه د رو دیواز

خودتماشا که خودعشق معشوق
هستی با قی نه ده دهیڅ اغیار

ته کریم رادشکك له او ره‌اسان
و قنا ر بنا عذا ب النا ر

کاته په تورکه تل ونورو ته‌نور
چه‌د«دولت»شه مخ‌و مخ‌ته دیار

(۴)

اې‌چی دایم جابجا ځر ګند
نه‌وینم غیر یی‌له تاځر ګند

هغه دانشته هیڅ له تاسره بل
له هغه شر که یی جدا ځرګند

چې په توحید دحق نظرلرې تل
ګل خلق پټ وینی خداځرګند

داهسی مخ به چالیدلی نه وي
بی ردا پټ یار دا ځر ګند

«دولته» دل یسې پر نعم مه تره
داجهان قطعی دی فنا ځر ګند

**څلورویشتم**

نشته اول آخر نها ن خر کنـد | بې دبېحدله‌شان‌نشان‌خر کند
ذاتساز چې‌جلوه و کړه‌دمخ | تو له عالم‌ته‌بې که ځان‌خر کند
خو پسې تير نشي له مال وسر | دې نه‌کاسخ‌چیر ی‌آسان‌خر کند

«دولته» گوره‌تل وسخ ته ددوست
بلو جود شرك كنه كمان خر كند

دادرېغزلی چې لوسړ ی بی نه ، دو همه بی پنځه او دریمه بی خلو ریتو نه لرېپه خفیف مزاحف بحر کی و یلی سوی دی، ددېغزلو په حشو کی واقع مستفعلن رکن هم مخبون‌دی چې مفاعلن ځنی جوړسوی دی په ضرب شپږم رکن اوعر وض دریم رکن کی واقع (فاعلاتن) فعلان ته اوښتی دی (فعلان) د(معراج العروض) معیار الاشعار او محیط الدایره دمؤلفینو په قول دفاعلاتن ابتر مسبغ شکل دی چی دابتر (حذف +قطع) په اغېزه فعلن ځنی جوړ اوبیادتسبیغ له امله تر وروستی (نون) د مخه الف ورزیات دی ځینی بیا وایی چې په (فاعلاتن) کی لومړ ی د تشعیث په اغیز دمجموع وتد (علا) یو متحرك توری(ع)غو رځیدلی او(فالاتن) سوی دی بیانو دقصر له امله‌دو رستی‌خفیف سبب (تن نون ایسته سوی او (تی) ساکنه سوې ده (فالات) ځنې پاته دی اوفع لان ته اوښتی دی.

سیفی عروضی او دچهار گلزار مؤلف له فاعلاتن ځنه دغه جوړسوی‌شکل (فع‌لان) مقطوع مسبغ بولی ځکه چه ددوی‌په قول له فاعلاتن رکن ځنه د وروستی‌خفیف سبب او دو تد مجموع دو روستی‌ساکن توريغو رځول او بیاپه پاته برخه کې دو روستی‌توری ساکنول قطعه بلله کېږي چې‌فاعل (بې) حاصل‌دی (فاعل) چی مشهو روزن‌ته واړول سی (فع لن) ځنی جوړیږي او بیا دتسبیغ په اغیزه تر وروستی نون‌وروسته یوالف ورزیاتوی‌چې(فعلان)سی.د میزان الاوزان مؤلف عبد القهار سمرقندی و پرویزخانلري بیا(د فع‌لا ن) نوم اصلم مسبغ ایښی‌دی.خو په‌هر نامه چې‌وی‌ددې‌وزن افاعیل داسی او دول کېږي .

پنځه‌ویشتم

فاعلاتن مفاعلن فع لان

فاعلاتن مفاعلن فع لان

پارسي مثالونه يې:

يار بر رخ زخط نقاب انداخت

پرده آخر به رويِ آ ب اند اخت

* * *

از طبايع هرآنچه‌سو جو داست

آدمی‌ز ان ميا مقصود است

د پښتانه شاعر دولت لو اني د رد ريمي‌غزلي په نهو ځايو کي څلو رراز،
د څلرمی غزلي په‌څلوروځا يوکی يو رازاو د پنځمی غزلي په دروځايوکی
دوه‌رازه تغيير و نه پيش دي ددالسی تغيير ونو د جو از ورواج بحث
دلوسرِ ى او د وهمی غزلي د تغييراتو په څيرنه کي تير سوی دی دلته بی
کتې مت په دغه وزن کي څو مثالونه وګورئ.

په اردو ژبه کی :

واعظاچهو رذکر نعمت خلد ـ فعلان

کر شر اب و کباب کی باتیں ـفع لان

عشق هی تا زکا روتا زه‌خيا ل ـ فعلا ن

هرجگه‌اس کی اك نئی هی چا ل ـفع لات

(مسر)

پا رسی مثالونه يې د شيخ فخر الدين ابراهيم عراقی (٦٨٨ هـ ق مر) په
يوه غزله کی ولولئ:

١ـفعلاتن ـ دل ودين و خر د زدست بد اد ـفعلا ن ـ ٢

فا علاتن ـ هر کر اجر عۀ بدست افتا د ـ فعلا ن

وانکه دل بست درسر زلفش ـ فع لن ـ ٣

ما هی آسا سيا ن شصت افتا د ـ فع لا ن

هر که پابر سر جها ن ننهاد ـ علا ن
همت او عظیم پست افتا د ـ فع لا ن

فعلاتن ـ سر جا ن و جها ن ندا رد آنك ـ فع لان
درسر ش با دۀالستافتا د ـ فع لا ن
هان عراقی ببر ز هستی خو یش ـ فع
نیستی بهرمات هست افتاد ـ فع لان

نو ر مثالونه يې:-

فاعلاتن ـ تابیایدبجاشنی گیری ـ فع لن
شکرازمصر و سعدی از شیر از

(کمال خجندي)

چشم گریان کجا وابر بهار ـ فعلان
زان چکد آب و خون ازین بسیار ـ فع لان
شیخ ما لید دست و پیش نشست ـ فع لا
برد اول بنان وحلوادست ـ فعلان

(جامی هر روی)

ددغو دروغزلو تقطیع په دریمم، خلورم او پنځم جدول کې وګورئ.

(٦)

ای چی عاقل بې رحم مړه په کم زاد باندې
چی سبق واخلی ملا مت که په استاد باندې
چی توکل په نصیحت وکه طالب شه دحق
توله دنیا له لاشی ده په آزاد باندې
په جهان مړه محبت په قرآن وکړه نظر
چی ارم غبنه له دوزخ شه په شداد باندې

یاندفرمو نو په لښکر په خه دو پاچا شه غلیم
پابلا باد شه دغیرت (۳۸) ولی په عادباندی
زیاته ظالم چی ظلم کاندی عبادت نه نوي
عسی باور یی ددل نشی په ایداد باندي (۳۹)
چی مسافر دطریقت یي برابر نه په لار
تیر (دي) رحمت وي دپاڅو په امداد باندي
په ارادت دي دقدرت کړه خلق و اره فرار
عرش و کرسی زمکه آسمان همه پر باد باندي
که ته خالق په فقیرانو شفقت نه کوي
بل دربي کوم دی چی مظلوم وکه فریاد باندي
عسی رحمت کړه په دولت الله پر شاه عرب
چی عبادت یي کړی نه وي وشی داد باندي

ددولت اوانی دا غزله په رمل مثمن (اته یزرسل) بحر کی وبلی سو چی ددغه بحر شکل دا دی :

فاعلاتن فاعلاتن فاعلاتن فاعلاتن
فاعلاتن فاعلاتن فاعلاتن فاعلاتن

پارسي مثال یی:

داشتم خوش رو نگاری باسر زلف نگا ری
خوش بو دبا زلف یاري داشتن خوش رو نگاری

اردو مثال یی :

هم ظفر همین اس په مفتون خوار و رسوا زار و محزون
و یه مانی یا نه مانی و یه جانی یا نه جانی

مګر دا غزله په سالم وزن نی نده خکه نو پرد غه وزن نه برابریږي . د دی پښتوغزلی په حشو (د وهم ، دریم ، شپږم ، اووم (رکن) نی فاعلاتن مخبون سوی دی یعنی

---

(۳۸) داکلمه په متن کی غیرت هم لوستل کیدلای سی
(۳۹) ایداد . توبیخ ـ مجازات حمید و یلی دی .
چی په مادی هم له مادی بر ناحق دبل ایداد کړم

لو مړی الف ځنې غورځېدلی او (فعلاتن) پاته دی په ضرب (آتم رکن عروض (ځلورمه رکن) دی فاعلاتن په (فع لن) اوښتی دی چې دا یو په اختلاف دفاعلاتن ابتر یا مقطوع یامشعث محذوف یااصلم شکل بلل کیږی (.م) یعنی دفاعلاتن رکن ورو ستی سبب خفیف (تن) او دو تد مجموع (علا) یو متحرک توری غورځیدلی دی درمل بحر دغسی مزاحف وزن رمل مثمن مخبون ابتر وزن بلل کیږی ځینی کسان ئې دابتر پر ځای مقطوع یااصلم یامشعث محذوف هم بولی ـ ددې وزن افاعیل داسی اوډل کیږی .

فاعلاتن فعلاتن فعلاتن فع لن

فاعلاتن فعلاتن فعلاتن فعلن

پارسي مثال ئې:

مژده ای دل که مسیحا نفسی می آید

که ز انفاس خوشش بوی کسی می آید

(حافظ شیرازي)

اردو مثالونه ئې :

عشرت قطره هی دریامین فنا هوجانا (۳۱)

درد کا حدسی گذرنا هی دوا هوجانا

(غالب دهلوی)

* * *

دردهی جان کی عوض هر رگ وپی مین ساری (۳۲)

چاره گر هم نهین هونی کی جو درمان هوگا

(مؤمن)

---

(.م) ددې اختلاف تفصیل ددریمې غزلی په ځېړنه کی تیر شوی دی.

(۳۱)، (۳۲) داردو ژبې په دغو دوو بیتونو کی (مین) کلمه چې دپښتو (کی) معنی لری په دوه ډوله تقطیع شویده په لومړي بیت کی دلنډې یامطلقی هجا او په دوهم بیت کی داوږدې یا مقیدی هجا پر برابری راغلی ده یا په بل عبارت په لومړی بیت کی د(مین) کلمې مجهوله یاء پر حرکت او په دوهم بیت کی پر حرف شمیرلی شویده.

د«دولت» دغه غزله نه بیتونه لري او په لسو ځایو نی یې (دری) رازه تغیر پیښ دی:

۱ـفعلاتن: چې یوځای په ابتداء (پنځم رکن) او دوهمه پلا په صدر (لومړي رکن) ی د(فاعلاتن) پر ځای راغلی دی دغه جائز او مروج تغییر مثالونه دادي:

فعلاتن-خم ابروی تودر صنعت تیر اندازي
فاعلاتن- بستد ازدست هر آنکس که کما نی‌دارد
(حافظ شیرازي)

فاعلاتن - ازین هر مژه ام آب روانست بیا - فعلن
فعلاتن -اگر میل لب جو وتماشا باشد - فع لن
(حافظ شیرازي

۲ـفعلن: چې او ودځایه په عروض (څلورم رکن) کی راغلی دی‌ددې جائز او مطرد تغییر مثالونه دادي:

خوش بود جانب گلزار رونسیم‌سحری - فعلن
غلغل بلبل ود ورقدح گلناری - فع لن
بسکه از اشک منت پای فرورفت بگل - فعلن
مردم چشم مرااز تو حیا می آید - فع لن
(حافظ شیرازی)

۳ـفعلان: فقط یوپلا په عروض (څلورم رکن) کی راغلی دی ددی جائز او مطرد تغییرمثالونه دادی:

نکهت مشک ختن می وزد ازبادنسیم - فعلان
کاروانی مګر ازملک خطا می آید - فع لن
(حافظ شیرازی)

شادی مجلسین در قدم مقدم تست - فعلا ن
جای‌غم باد برآن دل که نخواهد شادت - فع لن

ددې غزلی تقطیع په شپږم جدول کی وګورئ:

دیرشم

اې چې عاشق يې په اشنا باندې — نور نظر مه کړه په هيڅ چا باندې
هر چې عاشق شي ددلبر په جمال — غم شه شيرين لکه حلوا باند ې
د اجهان پل په حقيقت يا د دی — اخبر کا و لی سأ و ابا نـد ې
له نصيحت کوې ته سم څه په لار — ز انده تهمت که په بيتا باند ې
دا په عذ را لکه وامق شه سين — يا نه مجنو ن شه په ليلا با ندې

زربه شي کا نی د کامل په رضا
کـه نظر و کـړې د کيميا با ندې

داپښتو غزله هم په رمل بحر کی د ه څوارکان يی شپږ دي ځکه نو رمل مسد س بلل کيږی ددې غز لی په حشوه ( دوهم و پنځم رکن ) کی د فعلا تن رکن لو سړی الف غو رځيدلی دی ځکه نو مخبون بلل کيږی او په عروض (د ريم ر کن ) او ضرب «شپږ م رکن» کی له فاعلاتن څخه «فع لن » جوړ سوی د ی چی ابتر يا مقطوع يا مشعث محذوف يا اصلم با له سی د اوزن چی رمل مسدس مخبون ابتر يا دځينو په قول دابتر پرځای مقطوع يا اصلم يا دشعث محذوف باله کيږی افاعيل يې داسی بايدو او ول سی:

فاعلاتن فعلاتن فع لن
فاعلاتن فعلاتن فع لن

پارسي مثال يی:

ساخت محراب ملائک رويش
سجده بر د ند يکا يک سو يش

« سبحةالابرارجامـــی »

په د ې غزله کی چی شپږ بيتونه لري دو مرازه تغيير سته چی په څلورو ځايو کی پيښ دی دداسی تغيير و نو رواج دمولا ناعبدالرحمن جامی هروي په کلام کی وګوری:

زغم بی زریست چهر ه چو زر۔ فعلن
سر خ رو يی دهدت درمحشر ۔ فع لن

«سبحة الا بر ار ۹۳ مخ »

کر دۀ عالم گل منزل دل ـ فعلن
ا ز تو تاعالم دل صد منزل ـ فع لن

«سبحة الابر ار ٦٠ دمخ»

شاه والا گهر دریا کف ـ فع لن
که فلک گوهر او راست صدف ـ فعلن

(هفت او رنگ ۹ دمخ)

سر د سهرو ن سی ۀ لکدالنه بالاکه ین الف ـ فعلان
نخل سرما زده کی طرح سی جل جا ؤن کا ـ فع لن

* * *

دیگها آخر نه که پهو ری کیطرح پهوټ گئی ـ فعلن
هم بري بنی تری کیون آپ نی چهیړا هم کو ـ فعلن

(ذوق)

د دې غزلی تقطیع پهاووم جدول کی و گوری:

(٨)

| | |
|---|---|
| سر کټوي بهترله هسې عمر هچې جانان نلري | نه طلب کاندې دتر بت سر و سامان نلري |
| مخ یې د ی شمعه جهانسوزه نوراني بر تو | حیف عاشق چه دلو جان په ده قربان نلري |
| که ددنیا په خزانوشی په فر عون وعزیز | خوار و مفلس یې گنه قطعی چه عرفان نلري |
| ساحر ویان دجهان گل بیوفا دي لکه گل | اشنا یی کړه له دلدا ره چې هجران نلري |

په طر یقت دحقیقت دروهه «دولت »چې (دی) یار
حاجب و شحنه و بیا ده د رود ر با ن نلر ي

(٩)

| | |
|---|---|
| سر ده دي دل چه شب و روزیې محبت نلري | نه ارادت دعبا دت کوی قوت نلري |
| دل دمؤمن دا هسی نه وی مگر دل دشني | چې همه عمر سلا مت وي ملالت نلري |
| عاملادا ن که له درو یشه گریز ان ریځه شو | ... له ملائکه سر ه صحبت نمري (٣٣) |
| مال به بي مار . . . . . . . . . | چې بخیلی که لئیمی که سخاوت نه لري (٣٤) |

---

(٣٣) ، (٣٤) داخایونه ددولت یه قلمی دیوان کی نه ولو ستل شوه .

ملك عجب زیب ونمایش ده آرایش په عدل — ټک بهشی زړه له بطالت چی عدالت نلري
له عزیزی غواړی «دولت» (د) قناعت گنج دی
خوار او سائل وي هغه کس چی قناعت نلري

د «دولت» دواړه غزلی په رمل مثمن بحر کی دي په حشوه (دریم او څلورم رکنونو) کی واقع فاعلاتن رکن دخبن په اغیزه (فعلاتن) سوی دی په عروض (څلورم رکن) او ضرب (اتم رکن) کی واقع (فاعلاتن) فعلن ته اوښتی دی چی د فاعلاتن مخبون محذوف شکل دی یعنی دحذف په اغیزه دفاعلاتن و روستی سپک سبب (— تن) او دخبن له امله دلومړی سپک سبب (— فا) الف غورځیدلی دی داسی وزن عروضیان بحر رمل مثمن مخبون محذوف بولی افاعیل یې داسی او ټول کیږي :

فاعلاتن فعلاتن فعلن
فاعلاتن فعلاتن فعلن

پارسی مثال یې:

هرگزم نقش توازلوح دل وجان نرود
هرگز از یاد من آن سرو خرامان نرود

ددغه وزن دپښتو په لومړی غزله کې دوه وارزه تغییر په دوو ځایو کې پیښ دی په دوهمه غزله کې بیا دغه دوه وارزه تغییر په درو ځایو کې لیدل کیږي:

۱— فع لن: دلومړی او دوهمې غزلې په عروض (څلورم رکن) کی راغلی دی جواز او رواج لري مثالونه یې دادي :

حافظ از چشمهٔ حکمت بکف آور جامی — فع لن
بوکه ازلوح دلت نقش جهالت برود — فعلن

— —

گوئیا غنچه به آن لب زلطافت دم زد — فع لن
فعلاتن — که دهان خورد کند بادصبا از دهنش — فعلن
(کمال خنجندی)

دری دارشم

| فاعلاتن | مفاعلن | فعلان | . |
|---|---|---|---|
| داچها دی | عجب پ مثـ | ـلِ بهار | |
| مرګ پل تن | پسي خـزا | لَتَ خار | |
| فعلاتن. دمنافق | دِبد خُيُوُ | نَ شـلور | |
| خُد نمـا يي | کِبَر حسد | اِنـکا ر | - فع لان |
| بي وفا يي | ظُلَمُ فسا | دَ پخان | |
| نفس نا قص | لـئم بُخل | بـد کا ر | - فع لان |
| خو تفاوت | نـکا مـګر | يَـو يَـو | - فع لن |
| پاتُ مشکُ | پَلِد حـرا | مـردا ر | - فع لان |
| پ قناعت | صبر عـزيز | ش سری | - فعلن |
| پ حرص نا | صبر وتل | دِ خار | - فعلان |
| خاي دو رخ | تَش جا ودا | نج تَشت | - فع لن |
| چي تَ ناحق | ستم . د دِل | آ زار | - فع لان |
| بتول دنيا | دحق پ نيز | لا شي | - فع لن |
| ورتـ دا | پ جنخ دُرُخ | گلـ زار | - فع لان |
| دي عنايت | کوی پ مر | مـوزن | - فع لن |
| داي قادر | کرم رحيم | ستـ نار | - فع لان |
| وار هـر يو | عطـا لَ رحـ | ـيم ده | - فعلن |
| فعلاتن. جن دنيا | خني بهشـ | ـت دار | |
| نا اهـل کم | ادب سری | لث اور | |
| فعلاتن. وقاربُ | بَنا عذا | بَن نار | - فع لان |
| چي آنَا حق | ظُهر دي | منصور | - فع لان |
| پ ملامت | ی کر غرب | پـردا ر | - فع لان |
| پاتُ خالق | ت هـر صبا | بـګا ه | - فع لان |
| سجدَ کا مـ | ـر قـمر . فلک . | اشجا ر | - فع لان |
| يو حقيقت | شَ جا بجا | ظا هـر | - فع لن |
| دَيرَ مسجد | گِنِش پـهَر | بـازار | - فع لان |
| دارُبي نشـ | ـت بي دِدَن | هـرګز | - فع لن |
| دا ددولت | دعرش پ يَر | افـګا ر | - فع لان |

عاشقان د محبت په شراب مست دی
دمطرب په شا نۍ که پر سر دستارخرخ (۱)

لکه اسمان دحق په حکم تېز جار و زی
هسې ګرندی نه ګرزي د ګو نیار خرخ

دلداده عاشق په خوب بې غم په شو که
چه پر زړه یې وي د مینې تېره خار خرخ

چه دعشق ګرمانش یې پر زړه بل وي
داو ګې په دود به که پر سر د نار خرخ

فقیران ترا غنیا وړاندې پانصد سال
وبهشت ته به خوښ دروسي په بسیار (۲) خرخ

جبرئیل له دې وعید رسول خبر که
له دغه شو ته وکه نبي هو ښیار خرخ

دسماع خښتن هر ګز بې حالت نه وی
همیشه له ذوقه کاندي د بیدار خرخ

سچ تار ګه علته جار و زی چه څه موسي
د موحد په نزدیک نه که هیڅ اغیار خرخ

دمسکین په شان له شر که مبرا شو
دد یدار له مینې کړ مدام پایدار خرخ

هغه کس به دیر پښیمان شي ای دولته! (۳)
چه نن نکه پر دربار دخپل دلدار خرخ

خای په خای عجب جلوه که دجانان مخ
بیا پخپلو ستر ګو ګوري دخپل خان مخ

په ظاهر باطن چه وینې مخ د یار دی
بې د یار له مخه نه شته پټ عیان مخ

ښایسته د لبر په خان باندې مین شي
پېچا پیچ زلفې یې شب (و) روز روښان مخ

څوله سروساله تېرنه شي پهدا لار
د لربا ی وچاته نه ښیئي تابان مخ

دو ښیان یې له دیدنه بې نصیب دي
هر سبا بیګا یې و ینې عارفان مخ

شکر شکر یقین مخ راته ښکاره که
یکباره را څخه پټ شو دګومان مخ

اې دولته له نشانه بې نشان شه
بې نشان په شان ګنبې وینه په څو شان مخ

ښه جلوه زما دیار ده
چه ښکاره په هر دیار ده

وعارف و ته څرګنده
بې رقیبه بې اغیار ده

---

(۱) الف ،ك :ـ-عاشقان دمحبت پهشرابمست دمطرب په شان یې که پرسرخرخ.
(۲) «الف ،ك» : پهبسیار خرخ». (۳) البیرونی :ـ «شیخدولته ».

مکر واو مکر والله بازی واړه د مکار ده
وخپل خانو ته یې کړې په خو څو لونه بې شماره ده
که پوهیږی په رموزته لیږ و ینا ز مابسیار ده
دا پیاله دپیر له لاسه نن یې وڅښته بې خمارده
ستا به بت یې که دې مینه زن فرزند په سر د ستارده
مه یې نغو په که دې پلار دی چه پرېاینې یې دا لار ده
احمق څه شکل پرې هوس که بلا او په زوی دپلار ده
پهنۍ اور به څه شکل دروسی چه یې برخه دیسا رده
دیوانه څکه معذور شو واړه چار یې بې اختیار ده
ستا د شرم پرده ژغرې خدای کریم رحیم ستار ده

غمګین مه او سه دولته !

چه وعده دې ددیدارده

ستا صفت په کومژبان وایم حمیده ای ز ما ترخان تژدې حبل الوریده
په رضا قضا دې واړه چاری کیږې پر هر نا ر یې یفعل لما یر ید ه
بازی ګر په هر خای ته یې غیر نه شته ای له دیرې نزد یکې ناپدید ه
چه دمحبت په اور کښې ویلی نه شی هغه زړه دی ترسنګ سخت هم له حدیده
په معنی چه دنفی اثبات خبر شو ذا کران په هر نفس کښې دوعیده
ددنیا په نوې(۱) خیزدلبستګی مه کړ د قد یمی په هر حا ل به دی له جدیده
په عمل دنیکو بدیې اختیار درکه سعادت د ښو حاصل کړه له سعیده
دا واز په سر قریب واصل پوهیږی ددې راز پو ښتنه مه کړه له بعید ه
له تو حید ه بهخبر شې که ولولې حالت بخش منطق الطیر له فرید ه

دی بې نیاز نیکبخت بدبخت کاندې دولته (۲)

له عذا به یې ویر یږ ه له وعید ه

---

(۱) البیرونی :ــ «نو نو».
(۲) البیرونی :ــ «دی بی نیاز نیکبخت کاندی دولته» .

هغه زړه چه مالا مال وي له صمده — مکافات د خطا نه غواړي نه بده
دوست دښمن په نظر يو ورځر ګنديږي — دواړه کونه يکتا وينې له احده
په هر څه کښې اشنا مخ وخان نه ګوري — پر هيڅ څيز باندې نظر نه که بې حده
په ديدن به يې عاشق شې که يې سومې — حقيني دلبر ښا يست لري بې حده
ددوزخ دبهشت اهل ترشما رډير دی — پاك ديدار لره به يو يوځي له سده
ظاهر بين په ډير حيات (۱) کښې بيګانه شي — واحد ديدن بيرون دی له عدده
هر هڅار چه سړی که مدد له ده دی — خوك به ده وهلی نه شي بې مدده
زړه روښان (مثال اوسې) غفلت نمد دی — خپل روښان زړګی بيروون کړه نمده
چه قرار په شريعت کښې شي حوان دی — په بوك شريعت شمير تې دی امدده
په نيت مومن جنت جاويدان مومي — خان ددرد عذاب لايق که نه حسده
کينه ناك بدګوی شخبل په لت وهلی — د طريق پوشتنه مه کوه له رده
چه خاور کامل ګواهان درسره نه وي — پر صراط به ببر شوی نه شي بې سنده

اې دولته هر کلام معنی دار وايې
د معنی وينا تر کل خوا ږه خوږه ده (۲)

دايمان ونه دې اوسه هميش تانده — چه دې د رسته پر پاك دل باندې نشانده
په زړا په غم اندوه دې عمر تير که — دوصال په خوښی تل تر تله خانده
تيا ري د سفر وکړه خبر د ارته — داجل سواره به در شي تن ياګانده
دباطن په ستر ګو وزاندې روښه ګوره — رنګا رنګ نرقه په ده الا ړې چلانده
او بړ د اميد دې دحرص داني کړې نولې — هر نفس بې د نلتين په ميچن زغانده

(۱) «الف، ك» : «دامعنی تر کل خوا ږه خوږه ده» .

د را ز ق په ضامنۍ د ې با و ر نه دی ذم همته په هر خای خوشې گر زانده (۱)
په دنيا کښې به هر گز قرا ري نه کړ ې که تر غو ږ د ې شې یو خل د مر يښنو سانده
محکمې بې طمع مه کړ ه و به تلیږ ي ای د د م په لطيف مز ي او يز انده
دشير ين اشنا بيلتو ن هسې مشکل دی چه هر د م له د ر وشليږ ي د زړه سر انده
خنکدن ، د گو ر عذاب په آسان بير شي چه بې نن مولی پر د ل باندې پيزانده

په باو ر کښې جدايي مه کړ ه دولته ! (۲)
اولیا انبيا دي يو ه پيا نده

هيڅ مخلو ق له حقه نه دی بې امداده هر هر يو ه بر خه لري د د لدا د ه
زند ه سر دجهان واړه ه نصیب سوسي له قد يم کر يم رحيم رب العباد ه
که په عدل باندې راشي ، تفحص که ظالما ن به پا تې نه شي ، بې احدا د ه
که عذا ب و راحت پس له مرگه نه وی د نبي دوايي خه ؤ له ار شا د ه
دوی به هم دنفس خو شې مرا د حاصل که په تمام عمر به نه آست بې مر ا د ه (۳)
که موسی غو ند ې دانا بې ستا يع شه و مولی و نه لارنه ښنه بې استاد ه

داجها ن هرگز خالي نه دی دولته !
له نقبا ابدا ل و غو ث قطب عما د ه

په جهان کښې دلبرې هسې نو ر چاز د ه چه زما شا هد مهر وی نازك زيبا ز د ه
پرسپين مخ بې تو رې زلفې لکه تو رما ر هم ر و غ زړونه خو نږوي هم بې دوازده
ډير حو فيا ن به دواښ په دو دعاښق که چه بې کر شمه بهتر ه نر عذ را زده
رقيبا ن دمجلس، عيځو ك خبر نه شول چه دده ديد ن پر ماو کړ و وسازده
دلدا د ه عاشق له خوله سر ه تير ، دی هر ساعت بې خه شکل و ژنې د لربازده

---

(۱) البيروني :ـ « کم همته هرخای خوښی په گر زانده ».
(۲) البيروني :ـ «په اورکی جدایی مه کړه دولته .»
(۳) البيروني :ـ «په تمام عـمربه اسست بی مراده ».

له رنده غافله، هیڅ پو ښتنه مه کړه (۱) د د لبر د ښه دید ن قدر بینا زده
مجا زي گل رخان گل دراغ غولان دي(۲) نه مد ام بقا لري نه بې و فا زده
یوپه یوبې ا مر نهی د رته و ښو د که له امره قدم بېش وپس کړی تازده
چه قارون حریص دحق له امره ووت تحت الثرای ته بې سال ځی دده وبلا زده(۳)
څو محنته له یو نهی با ندې تېر شو دغه حا ل ا دم صفی با با حو ازده
خاموشي ورلره د پره خطا بي د ه چه لا یقه بې د یا ر د مخ ثنا ز د ه
په پا یه تر مقر ب فر ښتو به دی چه بې ذ کر لا ا له الا ا نا ز د ه

د فقیر د و ات پر ز ړه چه څه تېر یږي
خدای قاد ر کریم قدیم ر حیم د ا نا ز د ه

نن هغه سالك ددې لا ري ادب ز د ه چه له دم سره بې ذ کر د پاك رب زده
مرده دل د دل له سره خبرنه دی(۴) په تقاید بې په زبان د خدای لقب زده
په خواره په خوب کښې عمر باندې تېرشو نه دغم په لذ ت پوه نه بې طرب زده
هغه کس که طاعت نه کمالات د ی چه بې شناخت دنیك وبد د روز شب زده
د مو لی پرلور منزل څه اسا ن نه د ی چه دام پر د ا لار ځی هغه مر کب زد ه
عا قبت به تر منز له و ر سېږ ي هر طا لب چه د رښتینې لارطلب ز د ه
په خبر عقل غاط مه شه که عا قل بې دغه پو هه روم حبش عجم عر ب زده
په حیله به بې خلاص چیر ې شي له قیده دلر بای کر شمه ډېره بو ا لعجب ز ده
جا هل عمر کرانبها په غفلت تېر که نه بې قد ر د علما نه دمکتب ز ده
له کامل مکمل ، هیڅ پوشیده نه دي مسئله بې یاد پر ز ړه د هر مذهب ز ده

(۱) البیروني :ــ «له ړانده غافله هیڅ پوښتنه مه کړه».
(۲) البیروني ېـ «مجازی گل رخن گل دره غولان دی » .
(۳) «الف،ك»: «تحت الثرای ته دی مالدي ووبلا زده».
(٤) البیروني :ــ«مرده دلددلبروخبرنه دی».

هر ماهي څه له دريابه خبر نه د ی — حقيقت د د ر، دريا پېژند د کب زده

غير دبو ال به بې حجاب په ميان کښې نه وي — چه بې سيل پر فلك لکه کوکب زده

زه فقير دولت به روغ په نور څه نه شم

کل ز ما د درد دارو د دلبر لب زده

حقيقت د رنځور څه شکل طبيب زده — له طبيبه، به به زر لو نه حبيب زده

دبېلتون له درده څه باند ې تېر يږي — مسافر پريشان خاطر عاجز غريب زده

نا دا نا ن له مو نه فو ته خبر نه د ي — څوك مدام په سراى(۱) کښې نه اوسي لبيب زده

په هجران کښې دوصال اميدواري وي — دوصال دفوت کېد ومحنت قريب زده

د يقين ستر کې بې بيا مينديې بينا شو — هم اجل پېژني خپل هم بې نصيب زده

په يوه هفته پيدا، په بله نه وي — د بها ر د کل له عمره عندليب زده

خار د کل په دو دلطيف نه دي په باغ کښې(۲) — تيز ر و بې سختي بې وار ه له رقيب زده

بې ادب ددوست له قربه بې نصيب دي — دسولي دپاك درگاه ادب اديب زده

دا بد ن توره تياره فکر نقيب دی — نوسگه غل چه وکه غلا فکر نقيب زده

نوس دې هر څوک پر دنگرزې مسوی پرې مه کړه — په صورت لکه روباه څوی دذيب زده(۳)

په قدرت بې هر اندام سره موجود که — حق صانع دجسم څه عجب ترکيب زده

او س غلو ر کواهان کواهي لې ايمان داري بې — چه دخداى ثنادسل ددل په حبيب زده(۴)

د جاهل شعر به څه زېب که دولته !

چه نه وزن عبارت نه بې ترتيب زده

بلبل څه شکل دپر مسينه که پر کل باندې — د کل عيخ دلسوزي نه شي پر بلبل باندې

د خوبا نو له نظره خداى امان را کړه — زړه ژ وندون وري له عاشقه په کتل باندې

---

(۱) البيروني:- « سيراب ».

(۲) البيروني :- «خارکل په دود لطيف دي په دا باغ کې».

(۳) البيروني :- «څوی دزبيب زده» .

(٤) البيروني :- «چه دخداى ثنا دتـل ددل په حبيب زده » .

مخ يې شاه دى تر خورشيديې تجلا زياته — سايه بان يې توري زلفې تور كاكل باندې
چه پهموج كښې ددرياب حال يې څه زده تا — چه مدام دده استو گنه پرساحل باندې
پراسانه لاراو رنې ډوړ كي هم دروي — كهشامر ديېقدم كښېږ ده پر مشكل باندې
كه رښتيني مسلمان يې ته باور كړه — بې اشناسې غير هيڅ نشته پر دل باندې
عرش كرسي او وه فلك يې دوهم گام دي(۱) — چه سوز شوی وي د فكر په دلدل باندې
خدای رسول له هغه كسه آزردهشي (۲) — چه نعره و كه پهزور پر سايل باندې
بخيلان چه وچاور كه څه پښيمانشي ژر — لكه وو رلې پيارسان كهپر ښتل باندې
دل بسكې عاشقې مه كړه ددنيا پهځيز — مسافرتيار ولاړ يې پر منزل باندې
يكانكې ونا هغه كه چه يارخان وينې — دو سلتخصلت مشكل دي پر فاضل باندې
وړاندينې گناه به واړه خدای دروبښي — كه توبه په اخلاص وكړې پر كامل باندې
ته دحق پر لارسم څه بانه مه كړه هيڅ — چه قبول شي خلك وايي غيبت تل باندې
دانا واړه عيب خيل د بل هنر گوري — بې هنرجاهل غيبت كوي پر بل باندې

دفقير دولت يې دل كهله گومان پاك
صد رحمت شهداستادپهدلا يل باندې

پههرلورچه فهم كړم جلوه دلبر كاندې — مخ يې زياته جلوه ترسپوږمى ترلمر كاندې(۳)
كه د زلفو بوى يې باد د يوسې صحراره — خاروخس خاورې به مشك زعفران عنبر كاندې
كه جمال هو سره څر گند كه لكه دستنې سپم — درست جهان په رڼا خپلې منور كاندې
دعاشق له زړه هم صبر هم قرار يوسې — چهمعشوق يې پردې مخ ورته اظهر كاندې
تن پرور به دمحبوب پركوڅه نهشي تلى — عاشقان په دالاريون پهترك سر كاندې
هرچه زړه د گلرخان پهديدن بند كه(۴) — خان به قطعي مبتلا په لوی خطر كاندې

---

(۱) البيرونى :ـ «عرش كرسى اووهفلكه يې دوه گام دى ».
(۲) البيرونى :ـ «آزرده شى دير».
(۳) «الف،ك» «مخ يې زياته جلوه ترلمـر كاندى ».
(٤) البيرونى :ـ «بند كابند ».

سالکان به تر منزله و رسيږي ژر
که په عزلت درزه به پښو سفر کاندي

له صورته يې ارواح په اساني بيل شي
چه کريم رحيم بر چا رحم نظر کاندي

اسرافيل چه بر غو پو که د قيامت په و رخ
لوړ ژور به نر دې نرې برابر کاند ي

توکل باور هغه که په قسمت نصيب
چه گوما ن لکه خسرې يقين غر کاند ي

له د غه پس بې حاصل شي ترمرگ وراندې مرگ
چه رضا خپله د ده په رضا ور کا ند ي

لکه طفل اول بې اختياره را شي
حق کريم پرې مهربان پدر مادر کاندي

پادشاهي به بې نقصان کړې تل تر تله ته(۱)
نامرادي نېستي لوی گنج دی که يې در کاندي

که يې مست شا هدان و لي دمز کانو په تير
دا نېر دولت به دل ور ته چير کاندي

که عاقل يې رحم مه کړه په کم زادباندې(۲)
چه سبق و اخلی ندامت که(په) استاذباندې

که نصيحت کوي کامل په شفقت لکه دوست
لوی دښمن شي دناقص په ښه ارشاد باندې

بې سر و ت دبز رگا نو اد ب هم نه کو ي
هسې بداخوا لکه دښمن شي زړ او لاد باندې

زيات ظالم چه ظلم کاندي عبادت نه کو ي
هيڅ باور يې د دل نه شي په احداد باندې

ته دشيطان په امر مه خه مدام او سه په ترس
که دنيا بضاعت مو سې مه شه ښاد باندې

چه توکل يې نصيحت و که طالب شو د حق
کل د نيا لکه لا شي د ه په ازاد با ند ې

هر چه دی و يني د د نيا له مراد ته عاجز
خدای قادر به رحم و که په نامراد باندې

په جهان مه کړه محبت په قران وکړه نظر
چه ارام خه شکل دو زخ شو په شداد باندې

يادفرعون په لښکر په خه دريابشو عظيم
يا ولي باد شو دغيرت په قام د عاد باندې

چه مسافر دطريقت يې برابر که په راه
دير (دير) رحمت شو دپاکانو به امداد باندې

که ته خالق په فقير انو شفقت نه کوی
بل در کوم دی چه مظلوم و که فر ياد باندې

---

(۱) البيرونی :- «بادشاهي به بې نقصان کړې تل تل ته».
(۲) البيرونی :- «ای که عاقل يې رحم مه کړه، يک نامراد باندې».

په ارادت دده قدرت که خلک وایه اقرار    عرش، کرسي، څمکه، اسمان همه پر باد باندې

هسې رحمت کړه په دولت لکه پرشاه د عرب
چه عبادت بې کړې نه ؤ اشدا د باندې

اې چه عاشق بې په اشنا باندې    نور نظر مه کړه په هیڅا باندې
هر چه عاشق شو د دلبر په جمال    غم شو شېرین لکه حلوا باندې
که بې عاشق شې و زړه خاوره ذلیله    ماه رویان نه (کاندی) پروا باندې (۱)
په فراغت په غرنګ خوب که ځغه    چه په سر کړ خې تل اسیا باندې
داجهان پل په حقیقت یا ددی    نادان کوی ولې بادا باندې (۲)
په اخرت د ځغه نشته نصیب    هر چه عاشق شې په دنیا باندې
چه په عمل شو په وصیت دغلیم    څه تعب تېر شو په بابا باندې
عام راحت که دچار پایو په دود    ډېر مشقت دی پر دانا باندې
که نصیحت کوې ته سم څه په راه    رو ند تل تهمت که په بینا باندې
یا په عذر الکه واس شي عاشق    یا نه مجنون شه په لیلی باندې
زر به شي کانې دکامل په رضا    که نظر وکه په کیمیا باندې

که ته دولته په هوا درومې مدام
نن قدم کښېږده په هوا باندې

که راوو ځې دبدن له ګرانه بنده    د مقصود څېره به وو ینې څرګنده
هر عارف چه دبدن له بنده خلاص شي (۳)    مرتبه یې تر اوو ه اسمان بلنده
معنوي شاهد به مخ ورته عیان که    په خورشید جمال یې زلفې دوه کمنده
موزون قدیې دبستان سرو مخجل که    شېرین لب یې لذت زیات لري له قنده
که ګذر پرې وار یو د رباندې وکه    تا به خلاص که د دنیا له چون وچنده

---

(۱) البیرونی :ـ که یې عاشق شې زړه خاوره ذلیل    ماهرویان تل اسیا باندې .
(۲) البیرونی :ـ نادان کوی ملوا باندې.
(۳) «الف،لا» :ـ هر عارف چه وبدن له بنده خلاص شي .»

د دانا په نظر واره د نیا هیڅ ده — ای له ډېرې ناداني په هیڅ خرسنده(۱)

دخمارو پره (یې) نه‌شي بې غم گرزی — د غفلت شراب خپلي دي پرې پرنده

زمانه به‌سخت‌عذاب یوه ورځ درکه — دخپل نفس په مراد څو گرځې لونده

دمشرک په کور کښې د پرلې ماران دي — مخلصان دخدای محفوظدي له گزنده

چه‌له‌مرگه‌وراندې‌وسري تر سې‌نښته — تل تر تل بې شوه برخه له اننده

پرشیشه‌دزړه مې سنگ دآزار مه‌پرده(۲) — دا شیشه سانه شي زرم تنکل پیونده

هیڅ موت د صبر نه‌لرم په ناړو — پر ما ډیر د بیاتانه عذاب مه پسنده

په نظر ددلدار عاشق دولته !

یو دیدن دیار بهتر تر زرسمنده

چه مې ډېر ډېر یاداو دلبر سي بیاموند — لکه تږی مستسقي کوثر سي بیاموند

مخلوقات بې د جهان واړه ثمر دي — عسي لوی بیحد باقي شجر مې بیاموند

بوه نو رانه بکاره که مخ څوخایه — چه مې یوخای و پېژاندا کثر مې بیاموند

د اصغر عسي حجاب و له اکبره — چه اصغر مې که نمې اکبر مې بیاموند

سعادت را سره مل و نه ازله — چه کامل و اصل دحق رهبر سي بیاموند

دړانده په دو دحیرانو مې تیاره کښې — تر خورشید ترساه تابان گوهر مي بیاموند

سفر په ډیر کالو نو ومې سره — او س هزار شکر کومه سر مي بیاموند

په تاریکه منزل لرې ؤ لاردرازه — د بزرگانو پرمند تلم خبر مې بیاموند

ننداره ددواړو کونو په نس کښې — هر سبا یکاه گوم بصر مي بیاموند

ناهري افتاب رنیا څنې ترض اخلي — بې زواله پاک روښان خاور سي بیاموند

د افقیر دولت په تل ښاد ده کرم

ترمادر پلار مشفق داور سي بیاموند

---

(۱) :دابیت داليبروني کتابخانی په نسخه کې نشته .

(۲) البیروني :ــ «دآزارمه وه».

دتوحيد پر پنې واره پيدا کېږي
خوک اعلی (۱) پخې سمسوري خنې ددې

په مانند لکه يوه لنده دوه خام
د خوبا نو روورخې غسی ګله وڼې

هيڅ بانه پربانه نه بدي دلبري که (۲)
خپل عاشق ته خير خير ګوري ستر ګې رڼې

دسري ستر ګې بې خاورونه سرېږي
که له سرو سپين لې نګې وی خوا ګلې (۳)

سالکري بې پير کامل مه کړه دولته !

دتوحيد پر لار شړه دروه مه بې کړې

زړه په امر د سبحان خه
په طريق دعا رفان خه

د نيا پل رسول نوسړي
په سوارة غوندې روان خه

پر باقي د لبر کړه مينه
هر چه سري خنې ګريزان خه

دل بستګي پر هيڅ څيز مه کړه
بت شکن پر ده وخا ن خه (۴)

په صراط باندی ګذردی
ترك د نيا په ترك دخان خه (۵)

رهزنان په لار کښې دير ه دی
پر تل پر پير دحق جويان خه (٦)

مه د نو س و رمبو نه نغوږه
مه په نغوته دشيطان خه

چه وخدای وته دی بولی
پر هغه پسی د وان خه

ای دولته ! نيست نفې کړه
مست په مينه د يزدان خه

دقانع چه ملاتړلی ده دصبر پر وارژه (۷)

پری ديار له لاسه زهردی تر کل خواږه

که خوك بد ورته ووايی دی قهر کينه به نه که (۸)

چه په هر څه کښې دزړه په ستر ګې يار وينی ناږه

---

(۱) «الف ، ك» :- «خوك غلی» .
(۲) البيرونی :- «دلبرنکه» .
(۳) الف ، ك :- «که له سروسپين وی لك څو لګوی» .
(٤) البيرونی :- بت شکن پرده داران خه» . (۵) دابيت د«الف ،ك» په نسخه کې نشته .
(٦)«الف، ك»:- «پر تپيری حق جويان خه» .
(۷) دا مصرع د البيرو نی کتا بخا نی له نسخې نه نقل شوه .
(۸) البيرونی :- «که خوك بد ورته ووايی په قهر کينه نه کا» .

د ازل پهلاس چه روغ دی په ابد هغه رغیږی

کاږه چاسم کړی نه دی، نه کړه سم هیڅا کاږه

ناصح هر څوکه نصیحت که په دستور د کاملانو

داحمق (۱) ګومان شو پرې تل مې خان پکښې بلاږه

دنبی ولی روش دی سړی بولی وطاعت ته

منافق به خان هم بل یو وګناه وته لاږه

په ژوندون پسې مرګ شوی بیا په مرګ پسې ژوندون وی

په ساړه پسې ګرمی ده (په) ګرمی پسې ساړه

ای دولته ! خاموش او سه وینا لېږ په رموزوایه (۲)

په مجلس دسکینانو بسیار ګوی به بې کاږه

چه په ریاضت مې تاو کړ د هوا غوږ
د خپل یار او از مې واوریده په دا غوږ

په کمال دحسن هسی بنا یسته دی
بې لبنتی بې دریې زیب کاندی زیبا غوږ

د آواز په تسبیح فهم کړه څه وایی
د سامع سالک مدام دی په ندا غوږ

د دلبر آواز له هره لوري ها وري
د عارف مقرب نه وي په سودا غوږ

دښایست قدروایم ستر ګوبینا زده
د آواز مرتبه پېژنی شنوا غوږ

د اشنا خبرې نغوږه که اشنا یې (۳)
نا اشنا په ویل نه که د اشنا غوږ

ظالمان دخدای له قهره و یږه نه که
عزرائیل به یې سخت و مروړی فردا غوږ

انبیا اولیا خوږ به زړونو لا رشول
په خبرې به یې نه کا وه د یرچا غوږ (٤)

چه ولی نبي به غیب اوریده تل
هغه هسی غږ به چیرې اوري ستا غوږ

---

(۱) «الف ، ك» :ـ «دا حق» .
(۲) «الف ، ك» :ـ «وینامی په رموزوایه».
(۳) البیرونی :ـ «که اشنا شی» .
(٤) «الف ، ك» :ـ «په خبر به یی نه یاست دیر چاغوږ» .

کم کوي بی‌خلوت‌مشکل‌دی‌پر هغه کس — چه مدام یې اموخته وی په غوغا غوږ
چه د حق اوازیې واسطه‌ته اوری — پس له‌سر که‌به‌یې کوڼ‌وی‌له‌ندا غوږ (۱)

زه‌فقیر دولت (۲) یې‌خاو ره‌شو م‌په‌راه کښې
دی بې نیاز کبریا نه لری په ما غوږ

هر سړی‌چه‌پر طریق‌کاندی‌رفتار کوږ — ومقصود ته به ونه رسی پر لار کوږ
دمراد کعبه به چېری نژدې سو سی — چه پر لار مېنی او کیږ ځی لکه مار کوږ
چه منزل‌دور (و)درا زلرې‌دوړاندې — یوسربل‌سرله‌رامنه‌غږېږي هوښیار کوږ (۳)
عارفان چه حق‌شناس شی ځان نفی که — تکبر په جامه نه که په دستار کوږ
که‌طلب‌دحق لره، راستی اختیار کړې — غشی نښې ته سم نه دروسی بسیار کوږ
پیغامبر دخدای وصدق ینجی دی — حق‌پرست‌کسان‌هرگز نکه گفتار کوږ
گفت‌رښتیا لکه‌سم‌غشی‌دی‌په‌لاس کښی — خوله په سم‌غشی‌به‌ خوکوی گوزار کوږ
خپل بدن‌توی دښمن گناه عظیم دی — دمومن‌پرلار کښې‌پر وت‌دی‌لکه‌مار کوږ
ومقام ته دهغه‌مرکب تک‌کړان‌دی — چه‌پر شاباندې(یې) دروند‌ښېلی‌وی‌بار کوږ
دهغه فرزند به‌څه بر خوردار یې وی — چه دنفس‌په‌نغوته‌سم‌دی‌دمور پلار کوږ
مومنا نه‌دې‌یې له څرمه ملامت که — چه څوله‌بد‌پرلار یې‌ځی‌په‌خپل‌اختیار کوږ
دوزخی هغه سړی دی په دنیا کښې — چه په کبر روانېږي په بازار کوږ

بهشت ځای د متقیا نو وی د ولته
چه‌د خدای‌له‌ترسه نه‌کاندی‌هیڅ کار کوږ

ای دلبره تر شکر نبات لذیذ — ستاوصال پرماتر هر (۴) لذات لذیذ
چه‌بنه نوم مې ستا اشنا پر باندې‌یاد که — شو کاغذ قلم خوش بوی دوات لذیذ

---

(۱) «الف ، ك» : ــ «پس له‌مرگه‌شی کوڼ دی‌له‌ندا غوږ» .

(۲) «الف ، ك» :ــ «دفقیر دولت» .

(۳) «الف ، ك» :ــ «یو سره بل‌سره‌له‌وونه غږېږی هوښیار کوږ» .

(٤) البیرونی : ــ «ترکل» .

زاهدان له نادانی حور قصور غواړی ستادیدن دی تراب حیات لذیذ (۱)
چه سې ستا د مخ پر تو پکښې لیدلی تر نظر سې شو همه ذرات لذیذ
چه دانش په ذات (۲) لری هغه پوهیږی ذات باقی دی تر فانی صفات لذیذ

داشنادیدن تر ې زیات خوږ دی دولته !
هر چه شته په دوه کلی کلیات لذیذ

هغه زړه چه ذوق موندلی دی له یاره (۳) اشنایی به هرګز نه که له اغیاره
د دیدن شراب یې و ځښه مستغنی شو تر ایده به پرې سست وی بې خماره
نور عالم په کار و بار د دنیا لښلی د مولی طالبان خلاص له کار و باره
لاس و پښې پربل و هی خپسر بې هبر وی په دریاب کښې دعشق محو وی یکباره
حقیقت د اشیا کل ورته ښکاره شی چه خیرن زړه یې صفا شی له زنګاره
د عارف صحبت بې حده غنیمت دی چه مد ام خبرې کاندی له دلداره
بې نافه (۴) دمعر فت لرې په کور کښې خوشبویی یی د ه پر کل عالم نثاره
همېشه د کل په سینه مدهوش مست دی دبلبل په دو دترس نه کاندی له خاره
ددنیا هم د بهشت زېرمه یې پر ښبو ه هر نفس یې دزړه حب دی له دیداره
نن سودا پخپل سر و کړ ساعت دادی چیرې نه لاس خالی دروسی له بازاره
دقیامت په ورځ چه خلک صف صف پاځی خوار عاصی به څوک بښی بې کردګاره
د رحمت لمن دې لو یه ده بې حده د مسکین عیب پرې ښه پټ کړه ستاره

په نعمت دپرورده سایل ګدای دی
د افقیر دولت ته بیا مرز غفاره

ستا دمخ صفت به څو وایم غفوره ای ظاهر باطن په هر مکان حضوره
سر تر پایه درست روښان له دیوه یې مخ دې ښه سهی کاوه نشی له نوره

(۱) البیرونی :- «تراته جنت لذیذ».
(۲) البیرونی : - «مذاق» .
(۳) «الف ، ك» : «هغه زړ چه ذوق موندلی دی له یاره» .
(٤) البیرونی :- «نامه» .

ته خرمن دمهر و يانو د عالم يې (١)
خلقه د صفات هر څو بې حساب ده

خو شه چين ستا د ښايست دی پری حوره
واړه ستاپه نور کښې غرق نژدې و دوره (٢)

د ښه يار جدايي هسې سخت ماتم دی
لکه مور چه پر يوه زويه شي بوره

د دنيا طالبان واړه دروغجن دي
چه هرګز يې سودا نه کېږي بې زوره

چه طلب دمولى نه کهنورڅه غواړی
هغه زوی په حديث کم ياد دی له لوره

ستا قسمت به بې سبب و تا ته رسی
د خپل شوی رزق غم مه خوره ناصبوره

يو څو ورځې دردمحنت پر خپسر تېر که
چه د ايم دې سر يکار شی له سر وره

چه له خانه بې خبر در وسې آزاد وی
په ازاد پسې به نه رسې مزدوره

روح مرغه دايم ازادخوښ وي دولته !
دبدن په دام کښې بند شي له ضروره

پهذکر فکر خپل زړه صفا لره
شکر صبر په درد بلا لره

حق باطل سره يو ځای اوسی
په امتحان يې جدا جدا لره

توکل کړه طالب د حق شه
دواړه کونه به درکه تا لره

ځينی ځينې طالب دحق دی
زيات پيدا شوی نجس دنيا لره

حريص هسې زغلی دمال پهلوری
لکه چهدر ومی مګس حلوالره (٣)

چه يې خدای په رحم نظر نه که
څوك بههيڅ ورنه که هېچالره

هسې مه وايه څه سې نشته
که يې فقير نېستي اخفالره

کهنګولی غوښې غوړي يې نهوی (٤)
بس دی سپور طعام قوت ګدالره

ناميدله رحمته مشه (٥)
په زړه کښې جمع خوف و رجالره

مسافر يې پر پل به څواوسې
تکل وکړه خپلې ماوا لره

---

(١) «الف ، لكه :ـ «دده عالم يې» .

(٢) البيروني :ـ «خلقه دصفات هر څوحساب دی واړه ستا پهزورکی غرق دی نژدی دوره »

(٣) البيروني : ـ «لکه وری مګس حلوالره»

(٤) البيروني :ـ «ننګولی ،غوښی،غوړی، يې يی نه وی ».

(٥) البيروني :ـ «ناميديی له رحمتهمهشه» .

چه شجاع وی وسرگک ته هسې ځی ـ لکه زوم په خوښی خپلې ور الره
د پا کا نو نصیحت نه که سود ـ کبر جن منا فق جهلالره
هر چه غیبت که پر درو پشانو ـ په مصیبت یې خدا ی مبتلا لره
له بد ا نو بد له مه کړه بد ه ـ عزرا ئیل بس دی سزا لره
ظالمان به تو به هغه و خت که ـ چه سرگک ورشی په قهر خوا لره
ته سامع شه وصوت ته فهم کړه ـ مدام غوږد زړه په ندا کره

دافقیر دولت نورخه نه غوا ړه
خدایه باقی دیدن را کړی ما لره

د دلبر و پاك جمال ته نظر تل لر ه ـ خدای بینا ستر گې در کړی دی کتل لره
دلر بای له حدهزیات کر شمه کاندی ـ د جمال د یوه یې بله کړ ه محفل لره
دیوانه بلبل گر مه دی که عاشق شی پرې ـ حق خو بی بیحده ډیر ه و ر کړه گل لره (۱)
که دحسن طلب گار یې دخو بانو ډیر ـ مسافر شه ده په ده لمه چین چگل لره (۲)
که عاشق یې په داراه دسر ترس مه کړه هیڅ ـ زړه ژ و ندو ن سردی سوندلی دی یا زل لره
دیار سخ به مدام و ینې بې جهت پکښې ـ ته دزړ ه آرسی صفا له غش غل لره (۳)
و اشنا ته داشنا په نظر گو ره تل ـ د د و یې اندیښنه هیڅ مه پر یږ ده دل لره
په یار ان یو و بله دعیب ستار ی کو ی ـ که گناه عیب د یا رو و ینی بل لره (۴)
که عاقل یې له بدانو سره بښه کړه ډیر ـ خپل به خو دنه پر دی کیږ ی پر دی خپل لره
چه سوندلی یې طر یق دی هغه خو دسم ځی ـ هد ا یت د هادی نفع که مضل لره
دطالب دپاره ډیر ه دنیا ډیر فساد (۵) ـ هسې لږ په ا ندا زه شه د کامل لره
چه همت یې دسر دانودی په دل کښې نهال ـ په یو ازې ځان په جنگه ورشی سل لره

(۱) البیرونی :ـ «حق خوبی حده ورکړه گل لره» .
(۲) البیرونی :ـ «مسافری اوپشی ده مه خه دچین چگل لره» .
(۳) البیرونی :ـ «ته دزړه ارسی صفا نقش نغل لره» .
(٤) البیرونی :ـ که گناه عیب دیارو ینی پخل لره
(٥) البیرونی :ـ «ډیر فساد دی».

که دقدر دخبرې د ګوهر زده‌ګه — دزړه فهم د ناصح په د لایل لره
که نفې وایه نفې کړې نیست کل نیست وینی — ترهمه به وړاندې ته و رشی منزل لره

ای دولته ! په بلا په محنت صبر کړه
مومنان خدای پیدا کړی دي مشکل لره

هر نفس هر زمان په لیل و نهار — جلوه ګر دی خفی جلی دلدار
مخ یې دی بې فنا بقا خور شید — پاك نازك بدن لذیذ ګفتار
دلبری که په زلف و خال ابرو — په [redacted] کرشمه کبر په کج رفتار
صادقان عاشقان له شوقه د ده — هر نفس ښنی د غم شراب ناچار
همه عالم د عشق په می مست دی — خار و خس دادغه درو دیوار
قا فلې خې په هر نفس راخی — هره شپه هره ورځ په خپل خپل وار
دل منقلب په اصبعین دحق (۱) — بې خبره یې قوت پخپل اختیار
خو د تماشا که خود عاشق معشوق — هستی با قی نه ده د هیڅ اغیار
ته کریم را د شکله اوره اسان — وقتا ربنا عذاب النار
په زیرو بم تنا سرود که مدام — چنګ و رباب خود دف مزمار
باغ دا مل شو میوه پر رنګ رنګ — خوند بوی ګونې وی د هر اثمار
خورما انګور بهل او کتهل — مڼه امرود پسته او غزانار
پلیو نه دي ا ناناس شفتا لو — کربړی منزنبې ښولنې بز رګوار
انب نارنج سدافل او نبو (۲) — توت انځر شوه کړ ګنې کنار
زخچې کندو لې دی سمانې ترې — کال کونه ی چر بخې پوت بې شمار
بهي نشپاتې ګور ګو ر ې سپنګیر — جمني اوبښته بړ پیپل که چنار
فلسه بادا م ګهر نی ارغن جا — نا نګ بښیر وه خنغوزی کر فشار
سنځلی(۳) مندتې چری ، کمرك — ګنی املوك سرپ خوش مزه دار

(۱) البیرونی :ـ «اجمعین» .
(۲) البیرونی :ـ «نیبو» .
(۳) البیرونی :ـ «مسینری» .

ندو هند وانه خربوزه بادرنګ
هر جولغ لوربه لور روان لکه مار

پنخه دا تو ر بې ګل او بې بر
وله شمشا د، سرو شو ه، چنار

غوزې پې ، غوښې کورت شهد شه غنم
و ریجې او ربشې چنې دی جوار

کو ده مندو ه سهی سو ر ردن غوښت
وی د هر هر طعا م لذت بسیار

نظر په نور که تل ونوروته نور
چه دزولت شی مخ ، مخ ته دیار

داجهان دی عجب په مثل بهار
سر ګټ بېلتون پسی خزان لکه خار

هیڅ دا یم بقاوفا نه لری
بدن ما جز کثیف تل بیما ر

دمنافق دی بدخو یو نه خلو ر
خو د نما یی کبر حسد انکا ر

بې وفایی ظلم فساد که په جهان
نفس نا قص لئیم بخیل بد کار

اصل دنیا دسیم و زرا سباب
پیل، اشتر، فرس، قچر، حما ر

خو ك تفاوت نه که مکر یو یو
پا ك مشکوك پلیت حرا م مرد ار

په قناعت صبر عز یز شی سړی
پر حرص ناصبور دی تل ډیر خوار

خای بې دوزخ شی جاوېدان بې شکه
چه که نا حق ستم د د ل آ زار

همه د نیا د حق په نزد لاشی
و رکه نادان په هیڅ دروح ګلزار

ډیر عنایت کوی په هر مومن
خد ای قا د ر کر یم رحیم ستا ر

غوارې هر یو عطا نه رحم دده
خنې د نیا خنې بهشت د ید ار

هر کو ر بې شته په داجهان بقا
غوث ابدا ل قطب عما دا برار

نا اهل کم ادب سړ ی لکه اور
و قنا ربنا عذ ا ب ا لنا ر

چه اناالحق ظهو ر ددې منصو ر
په سلامت بې که غریب پر دار

پا ك خا لق ته هرسبا بیګاه
سجده که لمر قمر فلك اشجا ر

یو حقیقت شو جابجا ظاهر　　خانه مسجد لنشت په هر بازار

دارو یې نشته بې دیدنه هر گز

دل د دولت دعشق په تیر انگار

هر سړی چه ئې په قصد که خدای سبحان هیر　　خدای به دی که په عذاب کښې د نیران هیر

د پسره به عزیزان مدد کړی نشی(۱)　　ددوزخ پراور به سوزی بیا و بدان هیر

بدگناه کبیره شغه چه په قصد کړی شی　　خدای کریم هیڅوک نه نیسی په نسیان هیر

که یې بې اختیار ه بدله لاسه و شی　　سو نه معذب نشی په عصیان هیر

د مولی ذکر به سنفعت و رنه که　　خودی په یاد کښې نه که خان جهان هیر (۲)

دجهان هیر ول ئې بر باندې اسان وی　　ئې عغه عارف چه کړی دی حیل خان هیر

دد نباد بهشت دل نعمت که سو سی　　د دیدار لذت ید نه که عارفان هیر

چه حق ا ښنو نی فر ښتو نه (۳)　　له هیبته یې شی وار ه نوم آسان هیر

چه یې ا ښئیم و وې و آدم ته　　خدای دده له دله نه که هیڅ نوم گران هیر

مرتبې و نه به رسی په ئړ و رخ(۴)　　هر نو کر چه له زړه نه وی دسلطان هیر

که یې زرسمند اس زیان شی هیڅ باک نشته

دفقیر د ولت خدای مه شه یو زمان هیر

چه سینه کې پر ز ړه ير　　خان به کښیباسی په ډیر ډیر

ترتسمت به هیڅ زیات نه که　　در دبه بیا سو سی دسر ډير

دژوندن امید به اورد که　　لربه ښه که، که بهشر ډير

دی به گورلره تنهاخی (٥)　　که هرڅوبې وی لښکر ډیر

عاشق سخ ته دیار گوری　　په نو رخه نه که نظر ډير

---

(۱) البیرونی :ـ «عزیزان به خوك مددوکړی نه شی» .

(۲) البیرونی :ـ د ښتن ذکر بــــه منفعت ور نه کا　　خودده په ذات کی نه کا خان جهان ویر

(۳) وفرښتوو ته حق ودا ښیونی　　له دهشته یی شه واړه آسان ویر.

(٤) البیرونی :ـ «لړوخت» .

(٥) البیرونی :ـ «دی به گور لره تنهاوړی» .



هره چار د ده په سراد که　　چه عاشق شی په دلبر دپر
مخ یې گروله‌میا شتې را نیو　　لادی‌ښا یسته تر لمر دپر
د بخښښ بخښلی نه که　　چه متاع لری گوهر دیر
یو سړی تل بهتر شی　　په دا نش عمل هنر دپر
نن هغه شجر خو ښیږی　　چه پرې پورې وی‌ثمر دپر

د دولت فقیر خبري
په خوږوږ نو که اثر دپر

هر څو کړه دحق صفت دپر　　زیات لایق دی تر زیادت دپر
دادیدن لذت د خدای دی　　ترا ته واړه جنت دپر
که‌دحق‌طالب‌یې‌ترک کړه　　خوب خواړه و یل عادت‌دپر
په د نیا کښې مسافر یې　　اعتبار مه کړه‌په‌صورت دپر
یو یو بختور لار موسی　　سړی تللي دي غلط دپر
دسیږ نی کرامات کم شی(۱)　　په د روغ فحش غیبت‌دپر
ذکر فکر دزړه نور دی　　تا تاریک که په غفلت دیر
په دنیا کښې لذت نشته　　د مولی تر معرفت دپر
معرفت به دې حاصل شي　　مشغول اوسه په فکرت دپر
یو سړی تر بل بهتر شي　　په ښه خوی په سخاوت دپر
په حشر به پیغامبر که　　تفاخر پخپل امت دپر
و بهشت و ته به دروسي　　په عزت فرحت حرمت‌دپر
په اخلاص به ملایک که　　دهر هر مومن‌خدمت‌دپر
اقا در خه ښه پیدا که　　یو انسان‌په خوحکمت‌دپر

ستا لایق صفت کړی نه شي
که یې هر څوکه دولت دپر

(۱) البیرونی :ــ «دسیر کرامات کم‌شی».

نن مي ياغه شکل ياد پر ي خپل جانان ډېر    تر د يد ن يې شم تر ز ر خاله قربان ډېر
خپل ښايست بې عاريت وو اره دو ر که(۱)    تر قدم يې صد قه شو ل مهر و يان ډېر
د اشنا د خاک پای برابر نه دي    خوبرو يان که هر خوشته دي په جهان ډېر
چه يې پاك جمال ښکاره که بې نقابه    و د يدن وته يې خلك شي حيران ډېر
که هر څو يې تولوي پرې نه تولېږي    محبوب زړه د محب هسې که پريشان ډېر
شېر بن يار که ژو ندو ن غوا ړي مشکل نه دی    پر عاشق باندې وي سرو ر کړی اسان ډېر
عذابو نه د خدای خولونه يا د شوي    هيڅ عذاب مشکل بل نشته تر هجران ډېر
که وصال يې دا جهان د دوست حاصل کړي    په غمه جهان به نه کوي ارمان ډېر

يګانه ا د د دولته يو وجود دی

و دو بېن د ته ښکاره شو په ګومان ډېر

ای چه سخ دې ښايسته دی تر ګلزار ډېر    تر هر څه يم ره عاشق ستا په ديدار ډېر
هر چه ستا له ښه ديد نه بې نصيب شو    تر غمه په جهان هيڅوك نشته خوار ډېر
که ا ته جنته را که نارامي يم    بی تا حور ، قصور يې هيڅ نه دی په کار ډېر
د خلوت ياران به تا غوندې خوك نه وي    خوبرويان که هر خوشته دي په بازار ډېر
خلکه به ګومان کاندي چه بيمار دی(۲)    د بېلتون له غمه هسې يم تر زار ډېر
(ته) طبيب درنځو رانو يې کرم کړه    تر ما سخت به بل يو نه سوی بيمار ډېر
په کوګه چه ستا تېر يږمه پې ګورم    چه ګومان را باندې نه وي که اغيار ډېر
ته پر ما ولې سخت دل شوی بې نيازی کړی    ای زما و زړه ته تېر تر مورو پلار ډېر(۳)

---

(۱) «الف ، ك» :ـ «خپل ښا يست بې عاريت دواړه دورکه » .
(۲) البيروني :ـ «خلك دی ګو مـــان کاندی چه بيمار دی» .
(۳) البيروني :ـ «ای زما وزړه را تير تر مورو پلار ډير» .

په صورت تر دل خوبانو ښایسته (ده ی) که تند خوی بې نیاز نه دی د ل آزار ډېر
نورانې جمال خو ګند کړه مهربان شه دعا د ق عاشق خو لك نه اخلی ازار ډېر
زه فقیر دولت عاشق ستا په دیدن شوه
شاهدان د ي په هر ښار کښې بې شمار ډېر

بر سپین مخ و ښښته ډېر زیب که د دلبر تور تر کافور ګلاب خوشبوی تر مشك عنبر تور
که لښکر تمام چا تور لید لی نه وي د یار خط زلفې د ي و ګور ي لښکر تور
دوه فوزونه یو د بله و رغلل نل جنګ که د اسلام لښکر وي سپین کفار اکثر تور (۱)
چه خور سیده سومن شمشېر و رته و کاږي سبب عذر و له ترسه وا چوي سر تور
د طاعت رنګ د هیڅ باندې و نه که ویش په عمل د ده ګناه درست که د فتر تور
د پیری په وخت به کار د دین په حو کړې په خوا نې د ی طلب نه و که په سر تور
په فانې جهان امید د بقا مه کړه آسمان خمکه په نغاړی سنګ به که لمر تور
د عارف مومن به مخ تر لمر روښان وي د کافر منافق مخ د زاغ تر پر تور
هغه زړه تر سنګ آهن سخت دی دولته !
چه له دې غمه وانه غوند ي خادر تور

عارفان و حق ته سم ولاړ چه په لویه لار دد م ولاړ
بې تنها عارف سرباز ه بل سالك په دالار کم ولاړ
چه له یاره یکتا شو ې ښادی درغنه کل غم ولاړ
داجهان بې وفانې سرای دی خنې خور نکه عالم ولاړ (۲)
مرګ بېحد ښیرین دی خکه پیغمبر د کل امم و لاړ
پس له مرګه به خوښې که چه د دین پر کار محکم ولاړ
داجهان هغه جهان شی (۳) هم هغه ساعت چه دم ولاړ
زه به عم یه د الا رحمه چه زما د زړه ملهم ولاړ
اولیا د خدای په ستر له عر به له عجم ولاړ

(۱) البیرونی :- «اکثر ډیر» .
(۲) دا بیت د البیرونی کتا بخانې په نسخه کې نشته .
(۳) البیرونی :- «دا جهان همغه جهان شی» .

چه بې خدا یه له چاغواړې    د هغه دستر ګو نم ولاړ

په ترك حرص و آسمان نه    مسیحا ابن مریم ولاړ

بې قوت شا خکې به خوځي    سر غځه طربې حه یم ولاړ

دولت یو، یوانځې وګوت

له نظرهٔ بې دو غم ولاړ

ډېر یاران له دې عالمه په ارمان ولاړ    جمعیت بې حاصل نه ګه دل پرېشان ولاړ

ګرانبها عمر بې تېر که په غفلت کښې    دتوښې زېرسه بې نه کړه بې سامان ولاړ

که هیڅ ګل حیات په جهان نه ږو    له فاني دنیا بې عسې نام نشان ولاړ

چه توبه یې په اخلاص له بدو وکړه (۱)    د تایب له خانه واره ګناهان ولاړ

جنا و بدان بهشت مکان دی د پاکانو    چه له زړه یې شك حسد کبر ګومان ولاړ

هرچه نن دا مانت له باره خلاص شو    په صراط باندې دباد په دود روان ولاړ

د دنیا عمل مزرعه د اخرت دی    چه دلې بې طاعت نه وکه په زیان ولاړ

په اختیار ترخپل بدن تېر یده ګران دي    په دغه لاره سر نېري عاشقان ولاړ

دل بستګی یې د دنیا په متاع نه کړه    په هزار هوس له ملکه سلیمان ولاړ

هر نفس په مثال درګرانبها دی    په غفلت را خخه شکل ارزان ولاړ

د شېرین عمر قیمت را خخه نه ؤ    په هوس په لوبه عسې رایګان ولاړ

سړې خوك د دین پو ښتنه خپله نه که    چېرې نه چه بدان پاتې شول نېکان ولاړ

چه یاران لکه مرغان(۲) یو ځای پنډو و    دېیلتون غشی پرې ګډ شو خان په خان ولاړ

هیڅ خبر د هېچانه را غی په بېرته    په دغه لارې بې حده ډېر کاروان ولاړ

ای دولته بې غم مه اوسه بېدار شه

له فاني جهانه سلونه سحبان ولاړ

چه له دې فاني دنیا شېرین اشنا ولاړ    فراغت چېرې، هوس آرام له ماولاړ

---

(۱) البیروني :ـ «چه توبه‌یې په اخلاص وکړه نه بدو» .

(۲) البیروني :ـ «مرغونه» .

دسفر په وخت بې سلونه هېڅوك نه شول
ر و حا ني د لبر تنها راغي تنها و لا ړ

محبت بې بې مو لى له هيڅا نه كه
پاك ازاد له دوارو كونو سبرا ولاړ

سدرحمت بې پر بلند همت شه باند ې
په جيفه بې خان آلود نه كه صفا و لاړ

دصورت قفس بې مات شو سالم ووت
دمرغه په خان سې والوت له دنياو لاړ

پل صراط تر تېغ تېره تر شپه تاريك دى
دى شهباز غوندې تېز پر په هوا و لاړ

پاك ديدار باقي جنت ورته بېكاره شو
له هوسه بې خندا وكړه په شاو لاړ

شايسته مخ بې خر ګند كه وعاشق ته
منافق بې له در ګاهه بې نوا و لاړ

هميشه بې له ديداره سر يكا ر شو
چه يك لخت بې له نظره ساسوا ولا ړ

اشنا يان ددې جهان په وارو اروا ړه
په ارمان يو وبله بېل شول په ژ ړاو لاړ (۱)

يوه شپه دې په طاعت كښې تېره نكړه
ګرا نبها عمر دې هسې بې وفا و لا ړ

پخپل زړه كښې فكر بنه وكړه دولته!

يا له كومكه راغى چېر ته په بيا و لا ړ

ياكريمه زما جمع كړه پرېشان زړه
د دارو علاج سې تازده دويران زړه

غم شادي سو دزيان دتاله لاسه دى واړه
شكايت وچا ته كه غمګين حيران زړه

پر بلا محنت اندوه دې صبر وكه
هر محب چه وتړي پر مه رويا ن زړه

محب خان هر خوساتي خلاصيدى نه شي (۲)
عاقبت ور خخه يوسي شاهدا ن زړه

په دارو علاج ملهم بې درد زياتېږي
دعاشق چه يار زخمي كه په سژګان زړه

كه بې سر له تنه بېل كه خو بش به اوسي
په هيڅ كار بې نه بدېږي له جانان زړه

هغه كس به فراغت ارام په خو كه
چه مدام بې په د يد ن پسې تپان زړه

يار و ذوق له ياره كه خوشحال دې او سي
له كينې حسده و چوه د شيطا ن زړه

عرش كرسي اته بهشته بې و ران كړي (۳)
چه په قصد بې ګناه بد كه د انسان زړه

چه باقي اشنايي بيا سوند پخپل كو ر كښې
په فا نى پسې به ولې كه ارما ن زړه

چه دې صبر په هجران وكه دولته

دوصا په حال دې خو بش شه جاويدان زړه

---

(۱) البيرونى :- «په ارمان وبله بيــل شول په ارمان ولاړ» .

(۲) «الــف، ك» « محبت خان تــرى ساتي خلاصيدى نه شي ».

(۳) «الف ، ك» :- «ورګړي» .

دلەخوښ اوسه په غم کښې درددارو دېدو امه کړه

هم جلیس انیس دده بي قدیم حب له سو امه کړه
یار هغه‌به‌دی‌چه‌تل‌وي‌نصیحت کښې بې‌حاصل‌وي(۱)

له دې سرایه به وتل وي‌گانده کوچ دی ماوامه اکړه
یار هغه‌چه‌درست‌وفادی‌خوی عمل دده‌صفا دی

په دالاردېرې‌جفادي همراهي له غوا مه کړه (۲)
د نفس سینه پر مزه‌ده ملگرې د ده بزه ده

فکر سپرذ ګر نیزه دهجنګ هرګز بې‌لوامه کړه
داجهان‌دشش‌و پنج‌دی‌سراسر همگی‌رنج دی

له حاصل دې‌مخفي گنج‌دی‌مستحق‌بې‌نوامه کړه
هر چه سینه پرنانې کړې دغه واړه‌نادانې کړې

عاقبت به پښیمانې کړې‌ناسزا ناروامه کړ

نوس کەد ده پەلته و بره کړه له‌ضلا لته

حق‌حاضر وینه دولته‌سروی دهوامه کړه

| | |
|---|---|
| دسو لی‌ذکر مشغل کړه | پخپل‌زړه یاد‌ئ‌بې‌بل کړه |
| له اغیاره‌گوشی اوسه | لېرپه خوله و رسره دل کړه |
| دسولی سوند ل مشکل دي | دامشکل‌راشه‌نن‌حل کړه |
| دیفین په راه‌روان شه | توکل‌درسره(۳)مل کړه |
| چه له‌خدایه وه نزوله | ته پر داوینا عمل کړه |
| دسوای‌په کارچست‌اوسه | ددنیاپه چارخان شل کړه |

(۱) البیرونی :ــ «په صحبت کی یــی حاصل وی» .
(۲) البیرونی :ــ «همراهی لەهوامکړه».
(۳) «الف ، ک» :ــ «درپسر مل کړه» .

اوی منزلونه ي دو راندي — غافل ولي يې تكل كړه
كه سړى نه يې حيوان يې — كرخه زړه مه دا كل كړه
له خداى پيژني سړى يې — كسب پر پرده توكل كړه
دباور په براق سورشه — د كومان لنبكر قبل كړه

اى دولته ! يكانه شه
دزړه لري دل خال كړه

اي دلو يې (۱) لاري پر سر باندي ولاړه — نه پره نه پره خكه پر دالار ولاړه
له هغه چه زيان لري مجبت مه كړه — د باقي يار په طلب شه ويې غواړه
دنيا يو ساعت شمېر ليدونو ر كانو — په دا هسې بې وفا عمر مه وياړه
مرګ جلاد صرفه پر هيچا باندي نه كه — ترشمار زياته خكه يې كړه او جاره
دانګ لكه اسيا زنده سر نيني (۲) — داسيچن به دانه چيري پر بېر دي لواړه (۳)
هر زنده په داسمان خمكي تر ميان دى — داجل په تيغ به پري كه دده غاړه (۴)
هيڅ فايده به دچانه رسى وبل ته — خوله د هر يوه لمده پخپله لاړه
دژوندون دوركول (۵) دي چاره نشته — عزرائيل برات راوړى دى پر واړه

دمجلس ياران يې خو درخه بيل كړل
اى دولته بيغم مه اوسه تل ژاړه

اي زړه دل صفت درب كړه — رب پخپل كور كښي طلب كړه
سبب پر پرده، لوى حجاب دى — توكل پر سبب كړه
مار لړم به شي په كور كښي — سينه كمه له ذهب كړه
ستاقسمت به كم زيات نه شي — مه يې غم خوره مه سبب كړه
د بهار ورځي تېرېږي — پا خه جام پور لبالب كړه
درست جهان ژبه غوږ كښي — ترسنده او مه ادب كړه

---

(۱) البيروني :ـ «اى ديوى لارى» .
(۲) البيروني :ـ «زنده سرنون» .
(۳) البيروني :ـ «دامر پدانه چيـــرى پر بردى لواړه» .
(٤) البيروني :ـ «دواړه» .
(٥) البيروني :ـ«دوركولو» .

خان دده په ياد کښې خلاص خپل | له جمله شور و شغب لره
د مولی ثنا په ژړه کښې | بې نغمې بې خولې بې لب کړه
چه دې معرفت حاصل شي | غم د ې نشته تل طرب کړه
د توحيد خبرې پند نن | له صوفي ترك مذهب کړه

خدای حاضر وینه دولته !
ننداره يې روز و شب کړه

چه بې امر د استاد ياد پلار مور ولاړ | مغفوريه خوار غانې خوږ ر په کور ولاړ
دل آزار په عاريت قوت لويې کړه (۱) | د صعوه په دو د غاجزشه چه بې زور ولاړ
امانت د غښتن واړ وباندې فرض ؤ | هيڅ يو فرض يې ادانه که ډك په پور ولاړ
د ظالم به له د يداره څه نصيب وي | د باطن ستر کې يې نه بيامو نې کور ولاړ
د مظلوم د مال په وينه يې لاس سره کړه | ملوکان له دې دنيا په شر اشور ولاړ
نا دانان خپله په سر کڅ ناحق عوس که | دوی به هم عسې روان شي لکه نور ولاړ
دعاسيانو په غيبت د ل يدې مه کړه | کوم سړی له دې جهانه بې پيغور ولاړ
پيغمبر له خدايه راوړی خلور لارې | مومنان يو يو ثابت په دا خلور ولاړ
پاك د يدار لره به ورشي په يوه د م | هر عاشق چه مست د عشق په مرکب سور ولاړ

له دولته به اورخه غواړې يارانو
چه د عشق په اتش سوی لکه سکور ولاړ

ساقي جام پر له شراب کړه | نن يې ورد شيخ وشاب کړه
عارفان د مجلس واړه | دېوانه مست و خراب کړه
عمر درومې نه ستېږي | معطلي څه دې شتاب کړه
دل جوې عمل ثواب دی | سخ په لورې د ثواب کړه
نتوی و غواړه له د له | بيا پخپله يې خواب کړه
وبال دېر کړي که بيکنه | عبادت گناه حساب کړه
که عاشق يې دديداريې | مه خواره خوره پرمه خواب کړه

---

(۱) «الف ،ك » «لويې وکړه ».

دسرود په شان غږ پېږه — تار وکونه تن رباب کړه
یارب پاك دیدار ستا غواړم — دادعاسی مستجاب کړه
په آتش د محبت خپل — خام اوم زړه سي کباب کړه
هرڅوك دوست لري خپل اصل — اصل اصل ته مآب کړه

که مقصود غواړې دولته !
عمل په ام الکتاب کړه

تا پخپل محبت په دجمیل جمال ډیوه کړه — له نقابه دې سخ ویوسف و عاشق ته دې جلوه کړه
پېچاپېچ زلفې دې پرېشوې په کوڅه دنیا زړوانشوې — طایفه دې دسرباز و واړه قتل په شېوه کړه
څوروربرش کړې شپه وه دفراق دژ مې لویه — دلداده عاشق له مینې ستا په خال باندې یوه کړه
دهجران تلخې ده دېره توان یې نه لرم ماژ غوره — چه دې راله خپله لاسه دوصال خوږه میوه کړه

خپل ژوندون دولت نفی که ستا پرمخ زنده شي پایي
تل په زړه باندې میشته یې هېر یې نه یې هېر بی مه کړه

که دخدای رسول ثنا وایم مدام زه — یوصفت به یې بنه نه وکړم تمام زه
له اغازه مې مونده را سره را وړه — په یقین یم پوهېدلی په انجام زه
دکفار نعمت مې هیچ خوړلی نه دی — پرورده توي توانایم په اسلام زه
ترك جو دلمونځ به دایم پسې کوزارم — که مهدي دوړاندې بیا موسم امام زه
په صورت مې لاس پښې نه رسي عاجز یم — په زړه تل یم جوینده د دل آرام زه
چه مې حال دمعر فتخې حاصل شو — پر مسکین بایز ید به تل وایم سلام زه
که مې خلك خدمت که څه عجب نه دی — په اخلاص د کامل شوی یم خدام زه
په طلب ددوست له ننګه نامه تېر یم — د جاهل په دودبنده یم په ننګ و نام زه
په قلم کاغذ سیاهي به شي اورپورې — که د زړه له حاله ووایم کلام زه

چه داهسې به موزون کلامېو که　　له حضر ته اميد واريم په انعام زه

چه دزړه دحال بيان وايې د ولته!

ستادرازمحرمخولښه وينم خاص عام زه

هغه کس دې وېره کاندې له پرغزه　　چه بېدم په يادکښې نه ووزي ترېزه

هرنفس ددم ګونه تربين (۱) وله　　چه شيطان دې له زړه وتښتي له درزه

نا روا غيبت بهتان پرچامه وايه　　بې ګناه په لاس په خوله زبان مه ګزه

پيغمبر وې به امور امر اوسط دې　　وبلند مقام ته زيات ترحد مه غزه

ذات صفات سره يو اسم جسم ګوره　　لکه دی مراد ف يوه معنی له ازه

ترصفات پورې ذات هسې معلومې که　　لکه اورچه غرګندېږي له لوخزه

يګانه احديت نه دی په کثرت کښې　　شي زرګونه ښاخ مېوه له يوه رزه

بادسرسرغوندېتيزروځه په طاب کښې　　هر نفس د خپل اشنا پر لوري وزه

نعمتونه د ښېښي شو خوالوان دې　　معرفت غوندې بل هيڅ نه لري مزه

خدايه! ماوته نژدې ته يوه لويشت شه　　زه به تاوته شم زيات نژدې ترګزه

اې دولته که ولاړ که ناست يا ملا ست وې

هميشه د دوست سودا په زړه کښې ېزه

پرخپل يار يم زيات عاشق زه　　تر مجنون فرهاد وامق زه

دی پادشاه زه خوار ګدايم　　د ده چېرې يم لايق زه

زهر خورم د ده له لاسه　　ترشکر شهد فايق زه

بېده نه غوارمژوندون خپل　　با ندې هسې يم عاشق زه

په ازل مې بلی وویې　　پر خپل عهد يم واثق زه

ددې درد علاج به وکړم　　که طبيب مومم حاذق زه

که همر اه متقي مومم　　دوست به نه لرم فاسق زه

که بې ياره نورڅه غوارم　　ګول نادان يم لوی احمق زه

---

(۱) البيروني :ــ «تربيني وله» .

حور قصور جنت به خه ترم — سیب انار خرما بابیق زه
دخپل زړه په باغ ننبي وینم — سپو ي و ني حدا یق زه
هزار شکر چه بیرون شوم — د بد ن له سرا دق زه
خو ز نده یم تل به وا یم — بنه ثنا د پا ك خا لق زه
دولت ترك بي سبب ناست یم
په وعده دخد اي رازق زه

که دزړه حال و وایمه په بیان زه — یو دسیني داغ به پر بردم په جهان زه
چه دلبري پرده مخ راته خر کند که — زړه ژو ندون به باندي و باز م آسان زه
مخ په مخ راته جلوه له به هرخه کښې — تر دیدن شم دسبر ین اشنا قربان زه
په صورت لکه بندي په کونج کښې ناست یم — په زړه هر نفس کړ مسیل پر آسمان زه
چه د زړه پر آ سما نو نو و ختلم — عرش کرسي دوزخ بهشت و ینم عیان زه
د ر حالت حکم چه و شي له حبیبه — معطلی به و کړ ی نشم یو زما ن زه
مانت که دحق و رته کړم کر سپرم — دا زل په و رخ بي شو ی یم ضمان زه
که فاني راخني ولاړشي باقي سوسم — په فاني پسې به نه کوم ارمان زه
له یو ي نطفي صو رت مبا یسته ر و غ که — د قا د ر و بنه قد رت ته یم حیر ان زه
دایمان رخت به سالم تر خایه و ړ مه — که دنفس له شو کي بیا سوسم ادان زه
لهعذابه به خلاص چیر ي شم دولته!
که باتي تر سیان و یبتهلر م کو مان زه

که مومن یي مه و یاسه له زبان ژ اژ — مدام قام له ژ بي باسي د شیطا ن ژ اژ
جا هلا ن چه سر ه کښېني بد کو یي که — فحش بیهو ده تر میان و ایي خوشان ژ اژ
بنه کلام دخاطر جمعیت حاصل کی — جمع زړه تفرقه سو می که به پر یشان ژاژ (۱)
چه په ذکر مشغول نه وي بد ادب شي — په زړه بده ا ند یښنه که پر یشا ن ژ اژ
د معنی له نبي خبر ي خبر نه د ی — همیشه په خوله کښې ژ و یي بد کو یان ژ اژ

(۱) البیروني : ـ «جمع زړه تفر قـه سومی په پریشان ژاژ» .

ژاژخایی سړی دخپل ، خپسر دښمن دی — ددوزخ عذاب لایق شي په بیان ژاژ
چه بي نن دنبي خبري قدرنه زنه — دچارپای په دود ژویي جاویدان ژاژ
په دپند وینایي نه وو زي له ژبي — چه مدام بي وي ژولی پردندان ژاژ

بدګویان پر چا سر فه نه که دولته !
لکه نور چه تروخشک ربیي یکسان ژاژ

اې حق بنیه حق شناسه — خپل سر ژغوره له خناسه
یو نفس بي غمه مه شه — له دغه نژدې مواسه
که دزړه جمعیت غواړې — وتړه پنخه حواسه
دل بستګي په دنیا مه کړه — فاني سرای دی بې اساسه
که دانایي لاس وکاږه — د جمله بدی له راسه
حق حضوردی شرم وکړه — درته تل ګوری د پاسه
دمقصودپیاله بي درکړه — یو دم مه بې وده له لاسه
درسوزمعنی به ویني — چه خبر دی له انفاسه
چه له دمه بي خبر دی — ګل بې وګنه بې یاسه
په زرژ بووا یه نشي — داحد صفت بې قیاسه

اې دولته زړه دریاب دی
پکښې درد دي هوا جناسه

ای دنو س په بد خو یو نو کښې محبوسه — خپل اصلی وطن دې پر یښود بې ناموسه
دغفلت په خاه کښې بندیې وتی نه شی — زه دې ورچنې رابولم له مابروسه(۱)
بیهوده یې(۲) خان په تاپوری ز هیر که — د یقین دا نه دي نشته تشه بوسه
د خوند بین بندګی په رسم په ریا ده — د مخلص طاعت بې طمع بې سالوسه

---

(۱) البیرونی :ــ «لمما بوراسه» .
(۲) البیرونی :ــ «بیهوده می» .

رسیده فکر فانوس ذکر دیوه ده — دا دیوه به بله نه شي بې فانوسه
که د معرفت په بوی معطر نه وي — داچند ر به بهتر نه وله اینوسه

پخپل کاردې نظر نه دی چه زه څه کړم
دفیر دولت وعیب وته جاسوسه

زه چه پیر کامل خبر کړم له نفسه — دبد حرص ولي مې وختې له نسه
قناعت ګنج به بې چېری میسر و — که مې زړه خلاص کړی نه وی له وسوسه
چه مې سینه د صفات له زړه شوه کمه — ذات که مخ رانه څرګند له پیش وپسه
په دیدن یې دیوانه شوم بې اختیاره — په نیستي مې قدم کښېښو له هوسه
ګاه د ګل په دود خوشحال خندان جاروزم — ګه دابر په شان ژاړم لکه وسه
پاك قرآن بې وضوء داخله په لاس نه — چه خبیث دي حکم کړی لا یمسه
چه مې نفوته د نفس نه کړه روح مې مل شو — نورانی د یوه مې شوه پر زړه قبسه
ونادان ته هر څه وایم یوه به نه شي — د هوښیار د پاره لږ خبره بسه
منافق بد خوی مثال لکه لړم شو — درست بدن دده لاشه دی پرې مبلوسه
له یوسو راخ مار نه چیچي خو لك دو مخل — ته بې شوځله خو بشوی له ناکسه

ای دولته ! حاسدان ماران لړم دی
اشنایي ور سره مه کړه له دې پسه

هر طالب چه محکم و نیو درویشان لاس — پرې به زور هر ګز ونه که د شیطان لاس
دمولي په راه غولان ګمراهان پردی — دهر پیر نا تعن نه نیسي عارفان لاس
باد شاهي پرې دحق بې امره نه شي — پر رعیت باندې غالب دی د سلطان لاس
د پیر لاس شك شبه مه کوه دخدای دی — تر کرسي تر عرش بې تیر دی تر آسمان لاس
ما رمیت اذ رمیت و نخو په نداده — د رسول په لاس عمل که دیزدان لاس
تا به درست د نفس له تور مخا بیرون که — که په رحم دراوږد که درویشان لاس
دد رویش په ارادت به نعمت موه بې — له لمنې بې مه کاږه دا یمان لاس
نیارمشپه به رناور څ شوه چه ښکار مشوې — د موسی معجزه ور که حق تابان لاس

چه نا پنه ظاهر باطن ځنې موندِه شي | دکامل په ارز ونیسی طالبان لاس
دا د نیا ترقوت ملبوس زیاته جیفه ده | پر جیفه به آلود چیرې که مردان لاس
که ظاهر صورت فاني شي دالاس نه وي | په باقی عالم به سوسې جا ویدان لاس
که دې نن دحق طلب طاعت ونه که | پس له مرګه به بیا موږی په ارمان لاس

زه فقیر دولت مرید د میاروښان یم
له فتراکه به یې نه کاږم اسان لاس

دحق ذکر پاک شراب دی پرې مست اوسه | په نفي نفي نفي کړه تل هست اوسه
که د آخرت دیدار طالب رښتیا یې | د د نیا له محبته د رست راست اوسه
په قضا یې شه راضي سبب هیڅ مه کړه | و قدرت و ته بې سره بې د ست اوسه
په دبرحرص به برخه شوی بایلې شومه وی | توکل په رزاق کړه حق پرست اوسه
که دنیا خدای وتا درکه خوره بښه یې | هسې نه چه زړه تره پرې پای بست اوسه
دلبستګي په هر څیزخه کړې(۱) مسافر یې | په دنیا کښې یا پتخوس کاله شست اوسه
که نعمت ظاهر باطن عزیزی غواړې | تواضع هر چا ته کړه عاجز پست اوسه
دخنا س له نغوته و تښته دښمن دی | په وعده محکم د روز الست اوسه

ای دولته! مرګ رسول به ناګاه درشي
هرساعت ورته تیار په ابدست اوسه

که عاشق یې طلب ګار دخپل یار اوسه | له اغیاره د ښمنی کړه بېزار اوسه
غافلي بیغمی مه کړه مسافر یې | یوه ورځ به اجل درشی بیدار اوسه
بیابه وایې خبر نه وم درته وایم | هغه وخت به فرست نه وی تیار اوسه
نفس شیطان غلیمان شته پر لار خطر دی | د خپل ځان پیره لره خبر دار اوسه
خدای ژوندون سمع بصر لاس و پښې در کړل | عبادت په اخلاص کړه بې آزار اوسه
هیڅ قوت دعذاب نه لرې په ګور کښې | له ګناهه ځان ساته پرهېزګار اوسه
دهوا په نغوته ښکته پورته مه ځه | قناعت چیرې اختیار کړه قرار اوسه

(۱) البیرونی :- «په هرڅیزخه کړه».

لکه سچ په سر کین و لې محبت کړې    د بلبل په دود عاشق په گلزار اوسه
ده دې روح شاهد دزړه خلوت حاصل کړی    صومعه گوښه کړه ترك په بازار اوسه
چه د معرفت کوثر او به یې څښلی    هغه کس مه ی دی ترې خار اوسه

ای دولته !مرگنساتې به پیانه در که
هر ساعت ترې مشتاق انتظار اوسه

زه اول هم دېوانه وم، دیوانه یم لاتر اوسه    له دلداره هم خانه وم، هم خانه یم لاتر اوسه
نه طفلۍ عاشق وش وم غم طلب او بلا کش وم    د دلبر دمخ په شمع پروانه یم لاتر اوسه
زه هلك هم افسانه وم له عالمه بې گانه وم    تر څلو ېښتو کلو تېر شوم بېگانه یم لاتر اوسه
چه عاشق به جانانه شوم له اغیاره کرانه شوم    تورو ېښته مې دسرسپین شول کرانه یم لاتر اوسه
تل راضي یې په قضاوم هم صابر یې په بلا وم    عذر نه لرم له حکمه بې بانه یم لاتر اوسه
چه داخل دیار په صف شوم د تهمت د تیر هدف شوم    عام و خاص مې و ازه و لی نښانه یم لاتر اوسه
په خوشیاشتې په ښکاله عشق مرغه مې که تن جاله    که عاجز ضعیف شوم خه شواشیانه یم لا تراوسه
دشېرین دلبر له لاسه پاك شراب دعشق ډې قیاسه    څو بې حده ډېر مې و څښل فرزانه یم لاتر اوسه

دافقیر دولت یو مست یم داشنا په مینه هست یم
په ازل مې شراب څښلی دېوانه یم لاتر اوسه

دآشناو صال مې خو ښت شکر حاصل شو    خای په خای دی بلوه نه غیر باطل شو
ښایسته مخ یې په آینه کښې و کوت    خو دبخو د پخپل جمال باندې مایل شو
عقل سپیره (۱) دعلم غیب معلم دی    چه دعشق سبق یې و اخست لایعقل شو
ما به لېږد زړه له حاله بیان و که    څه کړم حال و یل و هر چاته مشکل شو
عارف یو دیدن په هر یوه کښې و ېنې    په دوهم به نظرنه که چه واصل شو
څو یې خان په گومان جز لیده لاجزو    هغه دم چه هوش د کل و رغی کل شو
روح مرغه یې علیین و ته پرواز که    داخاکی بدن غبار ترمیان حائل شو(۲)

(۱)ـ البیرونی:ـ «دعقل پیر دعلم غیب معلم ؤ».
(۲) البیرونی :ـ «دباطن په قوت خلاص له آب وگل شوه».

د جانان له جا نه هیڅ فا صله نشته داخا لی بدن غبار تر میان حائل شو (۱)
بې شریکه له هرجود ه یګانه د ی په هرغو ږ نغو ږی آوا ز په خو له قایل شو
د کامل مکمل هسې په ملاد دی
چه فقیر دولت بې مست په دلایل شو

په هر زړه چه دآشنا نظر افکند شو له کل غیر و مبرا په ده خر سند شو
په باو ر کښې دبې مثل نندار ه کـه د کوسان غریې له مخه لند پر کند شو
په یقین بې یار دیار په ستر کو و کوت او س په هر نفس اختر که پرې اند شو
له جمله قید ه په خلاص وی تل تر تله چه بې زړه دمست شا هد په زلفو بند شو
د دیدن په ذوق له خانه خبر نه دی د پتنګ په دود، دعشق په اور سپند شو
دی په خپل اختیارو نه سو ، په دااو ر کښې محبت و ر لره را خد و ه کمند شو
په طلب کښې ددوست وسر ترسر کنو ړاندې تل باقی ژ و ندو ن بې بیاسونه بهره مند شو
ای دو لته ! دکامل نظر بلند د ی
دفر داحوال دلې و ر ته خر کند شو

ای عجب پر زړه داناپه خوی او باشه محبت له غیر و سه لره با ا و باشه
خپل اختیار حکم دده په رضا پر ېږ ده په نعمت بې شکر لره خوش په بلا شه
هیڅ نفس دحق له یاده بېرو ن مه کړه په ثنایې په خر کند هم په خفا شه
د هلك په د و د غلطه بد ! حوله نو ر ، ظلمت و بله جدا و یته د ا نا شه
په ګناه ددو ست له رحم ناامید مه شه خو دپه خو د درته ناري و هی چه را شه
دتو بې په آب تبرې شو ې ګناه و ینځه د غفلت له وا ړه ز نګه مصفا شه
نن د معرفت آ فتاب د ی را ختلی د کو سان په تیاره خه کرځې خفا شه
خپل مقصو ددیار دیدن ګڼه په هر ځای بې پروا د خاص و عام، (له) غوغاشه (۲)
دم په دم بې و جمال و ته نظر کړه بې دید نه به ړ و ند ځو کرځې بینا شه
د با طن ستر ګې بینا لره د و لته
هیڅ نظر په نقش مه کړه بې نقاشه

---

(۱) البیرونی نسـ «دامصرع دالبیرونـی کتابخانی له نسخی نه نقل شوه.»
(۲) «الف ، ك» «بې پروا دخـاص دعـام غوغا شه .»

هغه طا لب ئن ور شو — چه د خپل نفس په زغر شو
چه اې يا ده يې دم د رومى — د مولى په حضور پرسو
د زړ"گې تخته يې توره — هر چه فهم يې په نغر شو
په صورت به د خنز ير شي — چه په د پرحرص كښې مر شو
يكانكي روغه جا مه ده — دى دې جا مې په سپرشو(۱)
تحت الثراى لره به دروسى — لكه گانى مخ په خوړ شو
دمس صورت يې زركه(۲) — د گا سل ذكر گوگړ شو
دا شيا احوا ل به و يني — چه يې ئن مقا م په لوړ شو

ای دولته ا ذات دریاب دی
دا صفات مثال چو عړ شو (۳)

چه عارف دحقيقت په شراب مست شه — په مستى كښې دبشر له خويه وست شه
كه اول په لااله (يې) خپل سر نيست كه — په اخر د الا الله پر مقا م هست شه
په گومان يې ځان جدا ليده له جانه — په يقين له خپل جا نان سره پيوست شه
آزادى فرحت به نه مومى هغه كس — چه مدام په دام دحرص هوا پاى بست شه
په فانى خيز و نو مينه روا نه ده — هر چه مينه په فانى كه دل يې خست شه
د بهشت طلب گا رهنر د د نبا پنځه — هرسومن چه دواړه ترك كه حق پرست شه
هيڅ زړه په ورڅ نه گوښي يې احده(۴) — د ذاكر چه د عمل قلم په دست شه
قدسي روحا نو وا رو بلى وو ې — دا زل په ورځ چه حكم دا لست شه
دخوبى عمر شل د پرش كاله خلويښت دى — ترشپيته پورې چه ورغى په شكست شه
عا قبت به له دې سرايه روانيږى — كه يې عمر سل يانوى اتيا يا شست شه

مسكينان له تاوخوړ و خلاص دى دولته
د مسكين گناه خوردن خاست و نشست شه

---

(۱) «الف،ك»: «دى،دى جامى بى سپرشو»
(۲) البيرونى: «چه دانس صورت بى زرگه»
(۳) البيرونى: «جوهر شو»
(٤) «الف،ك»: «هيڅ دى زړه نه گوى شى بى احده»

نن مې زړه ديار په ليدو (۱) مسرور شه — نهې جام مې دوصال په شراب پور شه
بې نشان په هر نشان کښې محيط شوی — خود نمای خپل سر ايده په ګومان دور شه
جلوه ګر بادشاه حضور ردې نه بې وينې — کم همت د بې وفا د نيا مزدور شه
ددرويش د نبه کلام قدر بې نه زده — دخناس اهل په سيم و زر مغرور شه
لور په لور دنفس په نغو نه پسې زغلې — د هوا پسر ه مې زويه ګا نه لور شه
بلبلا ن چه وحال ل غوا ړی د ګلانو — سر زنش دده خارو زغمي خرور شه
د صفي د رجه پورته وه له عرشه — چه شيطان بې لوبي وليده رنخور شه
دکانه د وحدت مې په هر نفس ښبې — تل ناري دا نا الحق و هی منصور شه
دموسی په دود په کوه طور رور خوت — په ګومان بې اتش پوری که دوست نور شه
دمغصو د ښېره له هيچا پټه نه ده (۲) — کوه دليل پخپل ګومان خنې مستور شه

دا فقير دولت په هر نفس اختر که
چه ددو ګونو سلطان و رته حضور شه

يارب يار راکړه و ما ته — دلربای مه روی زيبا ته
سپين بې مخ تاو کړي زلفې — تا يسته قد و با لا ته
ناست و لاړ په هر حال زيب که — هم خاسو شراو هم ګويا ته
ما واسق غوندې شيدا کړه — دی په حسن له عذرا ته
چه په داعالم کښې نه وی — بل د لبر له ده سوا ته
څوك چه يار سوافق موسی — له انيو هه د ېر تنها ته
تا خوړ کړ ی ز ړونه وا ړه — بې منهمه بې دوا ته
چه په سر له تا نه وا يی — دد ه سر له تن جدا ته
شب پرك چه شپه کړه خونه — دی نه وينی په رنا ته

(۱) البيرونی :- «په وليدو» .
(۲) البيرونی :- له هيچا مخفی نه ده».

هیڅ سړی لره نور نشته　　　　تر ډېره ګر دمو لی به

دا فقیر دولت منصف دی

نور به خه ؤایی تر دا به

نادر زړه مګر بیاموسی په‌جهان خو بش　　　　چه تمام عمر مدام اوسی یکسان خو بش

داد نیا بندی خانه پر مومنا نو　　　　یکښې دی‌مشرك نابوه کافر نادان خو بش

د باقی عالم لذت به ها له مومی　　　　چه یې زړه شی‌له‌دیدنه‌جاو یدان خو بش

هغه کس یارجانی سه ګنه نانی دی　　　　هرچه نه دی په دیدن دسبحان خو بش

که فردا یې سخیر که په بهشت کښې　　　　زه‌به‌کړم شراب‌رباب‌دیدن‌دجان‌خو بش(۱)

غافلان له غافلا نو محبت له　　　　په نعرد ذا کرانو ذا کران خو بش

مګر یو یوعاقل خان عیبجن و ینی　　　　زیات‌ړی‌له‌خپله‌ره دی‌پخپل ګومان‌خو بش

بې‌دخدای‌له‌یاده‌خو رې ګرځې اغوندې　　　　هسې‌ورك‌دنوس‌په‌کار بې خبران خو بش

مشرکان‌به‌دوزخ‌ته‌غمګین‌دروسی　　　　پاك دید ارلره به راشی عارفان خو بش

اې‌دولته‌که‌راحت‌جاو یدان‌غواړې

مدام‌زړه‌لره په‌مینه دسبحان خوبش

دا فلك چه هسې تېز ګرځی ترڅا به　　　　دژوندون باغ به‌هیڅ پرې نږدی‌بې‌لا به

هر زنده اکل ماکول دی پیداشوی　　　　واړه یوله بله خوری په غایب‌بې غا به

وار په‌وار به‌واړه‌وخوری‌په‌خو رځی　　　　مخلوقات مثال طعمه سرګند‌وړې با به

نادان زبرمه دسفر دتوښې نه که　　　　لکه ستوری چه جارو زی بې سروا به

پس له مرګه به‌هر یو هسې‌ارزو که　　　　که په داجهان خدای برخه که زما به

که‌هرچند‌زاری کوی‌سورپلارسره‌بولی　　　　دید بخت عاصی به نه کړی په چا به

دنیاخوب‌دهرې‌بناد ی،تعبیرېې‌غم دی　　　　ترخند اپه خوب کښې ډېره وژړا به

---

(۱) الف ، ك :ـ «دجانان خوبش».

د طوفان او به چهل ګز تر غره وي پورته (۱)　　　وي د عوج بن عنق لوز تر پرتوګا بنه
چه تحقیق صدق ینجی ، کذب یهلك دی　　　د ی مومن لره مدام د نیا رښتیا بنه
چه د خدای رسول ئی نو مسرګن پکښې یادیږی　　　شاعری بله نو ر مه ګڼه نر دا بنه

دسرې په سرګڼ لښې ئې بر سو د دی دولته !
پخپل قصد و رته دچا کم شي رضا بنه (۲)

د غفلت په خوب اوده وم له غفله خوب شو اخرو یښ　　　د ناسوت کاروان تیار ؤ و اړ ولو ر په لور ولیښ
چه د دوی حال مې وکوت زه هم شوورخی حیران وم　　　له حیر ته یې فارغ کړم د عشق می مې وڅیښ
شب وروزمې مشقت کړ زړه په مثل دصیقل کړ (۳)　　　دسوالې د کړ صیقل دی پخپل زړه باندې مې ښیښ (۴)
زړه چه هسی پرې صفا شی لکه پاکې او به ګوری　　　ر سیده فکر غواص دی پې بهادر یې وکیښ
د شه در مثال ئې یوه دی پر عر زړه باندې چه بل شی　　　د یین افتاب یې و خوت د ګومان سوری یې تیبښ (۵)
ای غافله فهم وکړه نیاز مندا ن د جهان و اړه　　　بیلنانه هسې خواره کړه لکه باد که کل اېري د ښیښ (۶)
حرصنا لت په مثال اوړکې و ترسپین دیری پور ې　　　د مادر په تیلکیاو د ملك په دو ددی و یښ (۷)
او ږده ئم یې سوزنې شوې او ګومان د ده اور نی ؤ　　　د شیرخور عادت دستور دی په اور نی کښې یې بلیښ

دا فقیر دولت ګرمنه دی که د عشق په آتش و سو
محبت دده سهار شو بې اختیاره یې را کیښ

نن د حق پیژندګلی پر هر چا فرض　　　که دانایې ګردن خلاص کړ الله دې قرض
اسرافیل چه برغوپو که کل به و مری　　　په دوهم و ار به ژنده وو زی له ارض

---

(۱) «الف،ك» :«دطوفان اوبه چهل ګزه تر هر غره پورته».
(۲) «الف،ك» :« دچاکم رضابنه» .
(۳) البیرونی :ـ «دصیقل ګرو».
(٤) «الف،ك» : « زړه باندی میښیښ».
(٥) «الف،ك» : «سوری تیبښ .»
(٦) البیرونی :ـ «لکه باړك دسریښ».
(٧) البیرونی :ـ « زبیښ».

ستاله حاله به ستالاس و پښې ګوا هي کي — به قياست چه خداى نيکي بدى کهعرض
مرطاعت ګناه چه کړى ،خمکه جلوس‌ده — يو په يو به واړه وايى بې غرض

دانقير دولت‌دعشق‌به رنځ رنځور دى
بې ديداره به روغ نه شى له دې مرض

نصيحت و چاته څه وايى واعظ — و خپل ځا ن ته واې نه‌وايى واعظ
دپرويل‌دعمرزيان‌دىزړه‌به تورکړي — روزوشپ که هرڅو ښه وايي واعظ
دجاهل‌پهزړه به سخت لکى تر کاڼي — پند که نرم ترا و به وايى واعظ
چه په ملک ملکوت شته ثنا به ستاکه — که ته تل صفت دده وايى واعظ
کاردیده‌لاشوىنه‌بې‌نادان‌وړوکيه ! — نصيحت په کوم زاله و ايى واعظ
وخپل‌ځان‌ته‌نظروکړه‌کل په‌تاکښې — څو نيت د هر کاله وايى واعظ
څه‌شکل‌ژر به‌په‌پاك‌زړو نوتاثيروکه — که بيان کشف و وا يى واعظ
چه‌عمل دهرآيت پخپل‌ځان وکړى — د لپذير پند به هاله وايي واعظ

که بهتر طاعت کوى په زړه‌ذاکر شى
څو دحق صفت په خوله وايى واعظ

دعاشق زړګى سوزان دى لکه شمع — تل دعشق په اور بريا ن دىلکه شمع
تاريکى بې د ګومان له مخه تيښتى — رهنما ى نفع رسا ن د ى نکه شمع
داجهان ستال تياره مدام په ده کښې — د عارف نشان عيان دى لکه شمع
هرساعت‌ژوندون‌دمرګ‌دپاره‌غواړى — هر نفس تر ځان ګو زران دىلکه شمع
دم په دم يې سر له تنه جدا کيږى — په پرې کړى سرخندان دى لکه شمع

روح‌لطيف خورشيد تابان ګنه دولته!
کثيف تن په ده روښان د ى لکه شمع

ما به ولى آه فريا د که فغان د ريغه — که اشنارا سره وى جاو بدان دريغه
نه فرا ته مخ دزړه په وينو و ينځم — کاشکىنهوىسرګيلتون په‌جهان‌دريغه
فرزانه بلبل په وخت د بهار ژاړى — چه اخر به باندى راشى خزا ن دريغه

د غفلت پرده به ماله شو په وا خلې
هر نظربه پالددیدن په هر لور و ینې
چه نې نن د حق طلب و که دا نادی
ظالمان بد بخت به پند ها له ا خلي
بې بها عمر بې تبر که په غفلت لښې
بې ترسا ن دخدای په ترس له هر خه موسی
عاقلان مدد فنا له خدایه غوا ړي

د رحمت آواز به اوري که غافته
له دې کشف دزړه حاصل شي له کاشفه
پرله سر که بې خان خلاص که له تاسفه
چه بې خو له شي د لحد خاوره لفه
د مقصود برخه بې واړه کړه تلفه
کل بلا به ویره کا ندی له خایفه
د شیطان خو کې چه ور شي مخالفه

دامیر دولت رښتیا وایی منصف دی
دانصاف وینا باور کړه له منصفه

هر نفس دعشق پیاله څښه یو دمه بې پوده له کفه
مست بېخود پر بله گرځي رقص کړې له چنګه دفه
که دعشق پیاله تل (۱) شو مي سم ثابت پر لاري د رومې
ته به خم برخه پیاموسې دبزرګانو له شرفه
تا تحقیق نبه خطا کړه چه مقصود و ته دې شا کړه
په طلب دې ددنیا کړه زندګی خپله تلفه
نه خو ا حرص نو به کړه و خالي وته اسره کړه
دبیګنې طمع مه کړه له فرزندو ناخلفه
که جهان په نعمت پور شي انب انارمنه انګور شي
چه خه شته واړه حضور شي دحیوان حب له علفه
چه رب موسی رباني شي دی بیزار به له فاني شي
چه د ربیاموسی غني شي مینه نه کا له خزفه
داشنا د یدن ډیر ښه شي چه په زړه کښې بې خای وشي
نکه د رچه موندونه شي په در یاب کښې بې صدفه

(۱) «الف،» :- «تل په شومي».

زه ريښيا وايم اى ورورەدا ر حضور دى ډيږ کوره

له دستر کو به يې کورد رياب يو وينه له لفه

چه روان به داسبيل شو رهنمايي خپل دليل شو

خيني يانې جبرئيل شو رسول نير شو له رفرفه

دلرباى دې دلبرى که له بيکس مره يارى که

خولك به خه برابرى که له على شانجفه

پر بيابان به لو ربه للى که سوار ه دينه که پلى

عاو خاص دېوار ه ولى دنهمت دتير هدفه

چه نيکي دې شي معلومه ستا بدي بهشي معدومه

خو بس بهشت لر ه ورد رومه اندوه مه کړه لاتخفه

مبر اله تش جهته پاك دغير لهشر كته

يو احد گوره دولته ! جلوه گر له هر طرفه

| | |
|---|---|
| زړه مې ولندى له فراقه | د دلبر لـه اشتيا قـه |
| هميشه په دردواه دى | له دې بې وفاا فاقه |
| چه دمينې په اورو سو | پا کيزه شو له ا نفا قه |
| دلرباى دلبرى وکړه | زړه يې راڼيو له عشاقه |
| جلوه گر دى جلوه کاندى | مخفي نه دى له مشتاقه |
| اخرت دهغه خپل شي | چه دنيا يې کړه طلاقه |
| خولك شاهان، خيني گداى شول | بر خې راغلي له ميثاقه |
| مه رو يان په چين ماچين دى | عرا قى دى له عراقه |

دولت يا رسو نده چه وووت

له دې شش دررواقه

برید ه دعشق پەراه خم همراه نەلرم بي عشقه

بی رفیقه بي پناخم پناه نەلرم بی عشقه

هرساعت چه بیلتون یاد کړم درد په خپل سر یاد کړم

خه کړم چاوته فریاد کړم نیکخواه نەلرم بي عشقه

مدام غوښي د زړه خورم ، د زړه وینی تل څښم (١)

خه کړم خه (٢) چیرته خم همراه نەلرم بي عشقه

معتقد پەداخپل رزق یم سبرا پەزړه له فسق یم

واړه سرتر پایه عشق یم بوه کامنه لرم بي عشقه

دا فقیر دولت نفي یم و گناه نه هوسي یم (٣)

خدای‌می بیا مرزه عاصي یم گناه نەلرم بي عشقه

د دیدن خوښي تر کل خوا ړه فایقه	دا پایه نه ده د هر خسیس لایقه

دلیلي بنایست مجنون و ته ښکاره دی	د عذرا له قدر چازده بي وامقه

(رنا) و رخ د معرفت بەهاله موسی	چه ظاهر باطن شي پاك له علایقه

بي شریك احد د کل خایو ئو خای دی	په طلب یي شه بیرون له عوایقه

چه‌یي‌سترگي دزړه‌وی مشغول‌به اوسی	په خلوت ، عزلت جدا له خلایقه

حق‌به مزد دطاعت بي حسابه ورکه	د هر هر یوه موسن څو خدا ئیقه

که پەخمکەد ریاب کښي پەهو ا اوسی	دا جل پیاله د هر زنده ذایقه

چەساعت‌دبیلتون یاد کړم هغەدم شي	پښن طول خمکه پرما (٤) باندی ضایقه

پەبلبل دلداده خەشکل دپرسحنت‌وی	د بهار په وخت جدا له شقایقه

---

(١) البیرونی :- «مدام‌غوښی دزړه‌خورم هم دزړه وینی تل څښم ».

(٢) البیرونی :- «څو کړم خه کړم».

(٣) البیرونی :- دافقیر دولت‌نفی یم‌وگناه ته هوسی یم .

(٤) «الف.ك» :- پری باندی ».

د خبری په رموز هغه پوهيږي   چه خبر وی د کلام له دقايقه

هيچ منت د نو رچا نه دي پاك او ستاد کړم

د ا فقير دولت خبر له حقايقه

ښه ثنا په پاکی تل وا يی له حقه (۱)   مخلوقات په نه اووه واړه طبقه

چه حاضر ناظر دی نه وينی محجوب دی   پری ظاهر باطن رنها ورځ د غسقه

په عدم کښې بې پخپل قدر تموجود کړ   عرش کرسی څمکه اسمان دوولس جوسقه

سرکشان به دنمرود په ود و د عاجز که   که غلك سباعي و روليږی له بقه

په لاسبو به ترکنار وتلی نه شی   چه په لوی دریاب کښې پريوځی بی زورقه

هرچه زړه په ساك تری ډير به پښيمان شی   په لا شی محبت نه که بې احمقه

که يه خوله لاني وهی اعتبار مه کړه   معرفت بې په زړه نشته بې ليقه

چه صورت پکښې تل نه وی فانی کيږی   دجهان بنايست دی واړه بې رونقه

مرد غازی شجاع هغه باللی بو يه   په يقين جه دګوما ن جامه که شقه

مخلوقات دجها ن واړه برخې موسی   له قديم کريم عليم رب الفلقه

دکامل د کلام غسی به تاثير دی

دافقير دولت پری مست يم بې عرقه

که دلبر پر ما ډير رحم عنايت که   بنايسته مخ به وما وته و ريت که

د د يدن شراب به راکه بې خماره   هميشه به مې وځان ته په حيرت که

د عارف صلواة په هر زما ن معراج دی   چه سجود د په ترك جو د ترك عادت که

پر عاشق دلداده هيڅ ملامت مه کړه   دلربا ی جلوه هر ګوړ په عنايت که

له غير ته بې اغيا روا ړه نفي که   پخپل ځان باندې عاشق دی خپل صفت که

د زره هستي بې محوه کړه له ميانه   يګانه خورشيد له ځان سره صحبت که

نورانی شاهد، مه روی پيچا پيچ زلفی   پاك شراب په لاس ساقی عجب زينت که

روح لطيف ناز که سيلمه خدمت بې ښه کړه   له خپل اصل سر د سينه پاك طينت که

---

(۱) «الف،ك» :- «ښه ثنا به پاکی وايی له حقه».

طالبان د دنيا وانړه ديوانه دی عاقلان و ديو انه نه خه وحيت که
حقيقت بهدرست ځالهورته ښکارشي چه نظر بهر کالي نه بهعبرت که
بهسا نند دده هيڅ نشته په عالم کښې
دنيايستحقت بي‌مهشکل دولت که

کهدلبر يو د مه لهمخ نري حجاب که دسانه زاړه به سر دسره شاب که
کهتاو کړی‌زلفي پر پردي‌وراندي‌و روسته دعا شق زړګی بهبي اوره کباب که
پر مسجد پر صومعه باندی کهپيښ شی پهديدن بهزاهدان مستو خراب که
کهروښان‌جمال‌څرګند که حجاب واخلي خلايق بهله‌جمله کاره کرياب که
دديدن مستي‌بي‌زياته تر کل کيف دي پهجلوه‌بهمست‌بي‌خو د تابې‌شراب که
د غافل زړګی به تو روی لکه تيغنه چدخدای‌بي‌يادهپروت‌درسته‌شپه‌خواب که
د ګومان‌پرده که لری کاله سترګو ديوسف‌پهدود جميل‌مخ‌بهد رياب که
هغه زړه چه د ديدن له نوره پردی تل له خپله خانهموج‌لکه‌درياب که
هر سړی چه له توحيده خبر نه وی دمنکر نکير بهځه شکل ځواب که
که اميدي‌پس له مرګه ژوندون نه وی د هر يه بد بختان څهلره صواب که
د بزرګانو حال‌به هغه مومی‌د و لته! (۱)
چهد روح‌به نغوتهځی حب نه کتاب که

چه پهمال منصب ،له چاسره حسد که تل باقي‌عذاب به ، بيا مومی‌ډير بدکه
خپل‌نصيب‌هر چا مونده لی ، په ازل دی بغض کينه ، د بل‌په برخه بي خرد که
تر قسمت بهځوك ، دانه زياته نه مومی کهپهډير مشقت ، دوا ړهلاس پښې‌ګنوکه
د دنيا فرزندان ، واړه تاد انان دی زيات‌لوبي پهمال منصب پهپلارپه‌جدکه
په د ښنه باندی به هاله ، نصرت مومی کهتقوی توکل، زغره خوف،خپل‌خودکه
عارفان‌دحق جلوه‌ګوری ،پرې مست شی نفسا نی ، د مجاز مينه په امرد که
هغه وخت که پښيماني که فايده نشته چه په غاړه بي‌لوی طوق دمن مسدکه

---

(۱) البيروني :- دبزرګانو حال‌هغه‌مومی دولته چهدروح پهنفوته دیدروح لهکتاب‌که.

د مومن ايمان دار، ځاى پر عليين وى تحت الثرى ليږه به څي چه خداى يې رد که
څپل عمل به و رسره وي، چه روان شي نه به څوك له ده يارى، نه به مدد که
دعارف په زړه كښې ،څكه غير نشته تل له ده به سره ذكر دائمد ده

دا فقير دولت به چيرى د وه كورى
چه په هر لورى نظر ديار پر خد که

| | |
|---|---|
| كننده يو دي بي شكه | لون لون تماشه که |
| مخ يې زيات تر لمر روښان دى | پوشيده دى له موشكه |
| هغه طالب يې مومي | چه خفى ذكر پيشه كه |
| توكل يې بخپل خداى دى | يقين باد گومان پشه كه |
| په ولاړې په ناستې كه د روسى | د حق ذكر هميشه که |
| چه زه څه وم څه شوم څه يم | هميش فكر انديشه که |
| گران ساعت يې د مرگ يادوى | په عمل د راه توشه که |
| بې ريا طاعت هغه دى | چه تنها يې په گوشه که |
| سر و څمكې وته څوړند | رسيده ،پخه خوشه كه(۱) |
| چه خو دي ده په طاعت كښې | زيان به د عمل ريشه كه |

د سړي شايسته په خوى دى
هيچ لړم يې په لاشه که

| | |
|---|---|
| په هر زړه چه عشق كوزر كه | هغه زړه زبر و زبر كه |
| درست يې را څكوىو ځان ته | ځنې بيل خوى د بشر كه |
| يو خسرى( يې)دوړاندې | د همت په نظر غر كه |
| د شيرين د پدار د پاره | عاشقان سودا په سر كه |
| پر عاشق يې تهمت كښيښود | د لبرى واړه دلبر كه |
| جلوه گر په هر ځاى دى،دى | ستر گې بو يه چه نظر كه |

(۱) «الف،ك :ــ «رسيده بخه خوشه كه».

خط خوشبوی لری له مشکه — مخ بي زيات جلوه تر لمر که
خد ای عزیز که سر ی عالم — چه د قنا عت گنج ور که
چه بې قنا عت شي خواردی — گرځی طمع در په در که
سنگ دلمر په تاو (۱) شي لعل — صحبت هسې رنگ اثر که
نا قصا ن طبیبا ن مه وی — درنځور احوال بد تر که
بد همراه د دین رهزن وی — سل گرفتار په لوی خطر که

د دولت خبري پند دي (۲)
پر پاک زړو نو بدا ثر که

د بیجد هستی و تاو ته نزد یکه — ته په زوره نعره مه لره کړي دیکه
مخلصان له ریا بي طاعت خلاص دی — هر چار په محبت په شوق رند یکه
ظاهر بین چه له و صلته خبر نه شی — په فصلت به یگا نه یاران پر دیکه
په گومان چه ځان ازاد گڼی بند موی — عارفان د دوست په بند کښې ازادیکه
دغه حریص عذاب خواری نصیب شی — چه دبل و مال ته گوری خپل خو ندیکه
د دنیا تعلق بار دی نه پوهیږی — په حشر (به) بي خدای وار (۳) پر تند یکه
د قا نع په نظر زر کانی کودي دي — نادانان یو و بله لو یي په ډیر کود یکه
عزرائیل دي دمرگ دام ځا ی په ځا ی اینې — هر زنده به پکښې بند شی خه ښاد یکه
چه دزړمستر گي بي نه وی ناانصاف شي — له بدانو سره ښه له ښو بدي که
پښتانه عرب مغل زيات ساده دل دي — د دنیا له مینې ډ پر هنر هندی که
نفس ناقص بې ریاضته بد ادب شي — لکه آس چه خو رب مست شي چمندی که
مقدم د گلی ښه تمثیل و یلی — زیات هغه غوځکی درو ندلیږدي چه تندی که
چه خلقت يي د ی نطفه آخر جیفه شي — خولك په هسې صورت څه لره خو دی که
اسرافیل چه نفیل پو که په دو هم ځل (۴) — په شیرین اواز به گل مرده ژوندی که

فقیران د دین شاهان گوره دولته!
په فاني دنیا کښې زیست په نامر دی که

---

(۱) الف ،ك :ـ «تاب».
(۲) الف،ك:ـ «ددولت خبره پنده — پرپاك زړه پیښې اثر که
(۳) البیرونی :ـ «وایه».
(٤) الف،ك :ـ «په دودهم».

دا فلک چه دوه یاران سره اشنا که    په ارمان ارمان یې بیا یوو بله جدا که
د بقا دوفا بوی پکښې هیڅ نشته    چه په دا جهان څوك مینه که خطا که
دبهار په وخت بلبل څکه ډېر ژاړی    چه اخر بەمایې ګل، ګل بەبې دا که
دخزان باد به ګلان له باغه یوسی    ظاهری بنا یست له چا سره وفا که
جدایی دجهان‌نرخ دی بانەمە کړه(۱)    د اجل په تېغ به عرزنده فنا که
محبت بې خدایه واړه دزړه‌رنځ دی    دل بستګی سړی ناحق په هغه دا که
درحلت‌په‌وخت‌چه بارتړی نادان‌وی    عاقلان د تلو سامان‌له‌کوچ پخوا که
معنوی شاهد بەووینی په ځان کښې    هرچه زړه‌دشکك له زنګه مصفا که
په‌هرزړه‌چه مینه زوروکه ګو باشی    بو صفت دیار یه څولونه بیابیا که
عارفان‌دپاك دیدارپه شراب مست دی    محبت نه په عقبی نه په دنیا که

دا فقیر دولت به محوه شم یکباره
که دلبر دد یدن‌مې (۲) بیاپی‌راته

دلداد معاشق بەغه لرەډېر غم که    که‌اشنایی له خپل‌ځان‌سره‌محرم که
دوصال‌شراب‌پرې وڅښوی‌ساقی شی    ددیدن‌په‌ذوق‌یې‌مست‌خوشحال‌خرم که
دظاهر باطن مشکل بەپرې اسان وی    چه کریم یې په سایه دخپل کرم که
هغه زړه‌چه‌دهجران‌په تېغ‌زخمی وی    مهربان به خپل وصال دده ملهم که
خوږزوندون‌بەباندې‌تلخ‌شی‌تل‌بەژاړی    چه په داجهان استوګنه بې همدم که
هغه کس سعادتمند دی له ازله    چه دیدن‌له‌خپله یاره په هردم که
خدای بادشاه‌ظلم پرچانه که عادل‌دی    هر سړی په بد عمل په ځان ستم که
اشنایی مې په هوس کړه خبرنه وم    جدایی به غم زماله عمرمسم که

دافقیر دولت به ولې ډیرډېرژاړی
که اشنا دخپل وصال عهدمحکم که

په ازل چه یې نصیب نه وی له سرکه    په‌کوشش‌به‌ځان‌څوك‌خلاص‌نه کەله‌ترکه(۳)
د وحدت جامه یکتا د وتایې نه وه    د ګومان په ستر ګو تاو لید د غبرګه

---

(۱) البیرونی :ـ «مانه مه‌کړه».
(۲) «الف،ك» :ـ «پی».
(۳) البیرونی :ـ «له زګه».

د سپوږمۍ د نوي پاڼي زيړی ښندی	دخزان په وخت چه ونه شي بي برگه
په توبه د اخرت درسره واخله	يو قدم په دالارتگ نه که بي برگه (۱)
نه دي نن د حق طلب طاعت ونه ده	بيا به ته پره پښيماني کړې پس له مرگه
دار وا خدتن بيلتون څسي مشکل دی	لکه خوک حيوان زنده کاږي له ورگه
دبدن گوسپندبه مرگ شرمښ پاره که	نه چا پير تري وتړی دا ښن ترگه
ترساعته به يې سړی ايري سکاره که	مرگ مثال اتش سوزانتن وچه گرگه

پر شير دولت به چيري دلسوزی که
سرگی خو پادشاهان پري پشتل له ارگه

د همت مرکب دي مه تړه بي بانگه	مدام جنگ نه نفسه نړه دياد په سانگه (۲)
نه خبر د کامل بيا سومي پر د الار	د يقين توښه موجود کړه پسي د انگه
هر قدم د کاملا نو پر قدم ږده	تر حد وړاندي وروسته مه غزوه ښانگه
در و يشان د خدای د در گاه زمري دي	د زمري قوت به چيري لري پړا نگه
د مولي طلب به چيري کړې حريص يې	چه زيات جهد دی له درم دی له دانگه
د دنيا لاشي حاصل د پارد گوره	د مظلوم په ځان لگيا يې لکه کانگه
چه قرآن حبل المتين مو لا ياد کړی	په داو ياسته لاس محکم لرمسم زانگه
د توبي ونه په خپل اصل يوه ده	د بهشت په هر کور شته دی ددي څانگه (۳)

دصفات په شمار غلت مه شه دولته!
يو احد دی جلوه که په خو سوو رنگه (۴)

له وحدته شوه پيدا د کثرت غورنگه (۵)	نه په دا دنيا باور کړې د بزرگه
صفات يوه لمحه بي ذاته نه پاڼيږي	له مېزه خالي مه گڼه هيڅ درگه

---

(۱) الف،ك :ـ «يوقدم په دالارنه كه مگر بي برگه» .
(۲) الف،ك :ـ «مدام جنگ له نفس كړه ديادت سانگه ».
(۳) البيروني :ـ «څانگه».
(٤) البيروني :ـ «دانگه».
(٥) البيروني :ـ «غوړگه» .

درسته‌شپه غافل پروت‌مه اوسه‌بيدارشه(۱)　　د مها ر پا ئېده پند وا خله له جر گه
روح‌مثال‌يوسف‌مه روی‌شرمېږ شيطان دی　　پا يسته يوسف‌خپل و ژغو ره‌له گو ر گه

خپل عمل باو ر نابت لره دولته !

درست‌جهان‌يوه‌پوزه،خوله،غو ږيوه‌سترگه(۲)

د د لبر د مخ له خيا له　　آ شنه يم بې مثا له
بې د يد نه نه پا ئيزم　　لکه نو ی بې ز لا له
پيا يسته له مهر وماه د ی　　بې ما نند ه بې مثا له
زړه مر غه مې نه خلاصيږ ی　　د د ې محبت له جا له
لاس د ې پر ينمځې له خا نه　　چه اميد که له و صا له
هر عاشق چه تر سر تير شی　　ئ له و رسی ار گما له
د توحيد پياله به و ر که　　يا ر پخپله ما لا ما له
مستقبل ماضی به پر يږد ی　　محبت به که له حا له

دفقيربه دودبه‌خلاص‌شی

دد نيا له قيل وقا له

پر سر بې نه دی خوا ر ی محنت مشکل تل　　نه راحت دولت صحت ښادی خند ل تل
نامرا دی بيما ر ي غم فا قه تل نه وی　　نامرا د مو ندل ښنل خوړ ل حاصل تل
په ر يا له جهر ی ذ کر ماجتناب کړ ه　　نوم دحق په زړه گنبې پټ‌يادوه‌تل‌تل
د عارف واجد (۳) مقام د معرفت د ی　　هر نظرد د وست ومخ وته کتل تل
زاغ حر يص منکل الو د په جيفه گر ز ی　　دلداد ه بلبل دی مست پرمخ د گل تل
باد خزان بې په ارما ن و بله جدا که　　ښه وصا ل له گله نه د ی د بلبل تل
نو رسر ی د د ين د نيا په کار مشغول دي　　دعارف‌بې‌دوسته هيڅ نه‌وی(۴) پردل‌تل
گو ی د حقيقت به يوسی له ميد ا نه　　هر طا لب چه پيرو ی کا د کامل تل

(۱) البيروني :ـ «نادانه».
(۲) البيروني:ـ «دوست جهان يوه پوزه،خوله غوږ دی يوه سترگه ».
(۳) البيروني :ـ «واحد ».
(٤) البيروني :ـ بې دوسته هيڅ‌نشته.

کامل خپل سر به ښل هر سړی په ګوری ناقص ځان و ینی به که غیبت پر بل تل
ظالمان به کښته دروسی و دوزخ ته پر بهتر جنت به ځای وی د عادل تل

پس له ګه بهستا ښیخو لګ په ښه نه شی
په حیات د ولته زیر مه کوه خپل تل

پر ګل څه عجب سین را غلی بلبله خدای دې دامحبت کم مه ګړله دبه
چه د ګل دپا ره راغلې په عالم کښې تهسوخته بلبل به نه پایې بې ګله
هغه جام چه دتوحید په شراب پو رو(۱) مهر با ن ساقی و تا ته در که خپله
د خما ر و یر ه دې نشته مستغنی شو ې مست بېخود دېوانه ګرځه تل ترتله
ګل شرا ب شا هد ساقی مطرب حاضر دی دغه هسی په ساعت دی کله کله(۲)
له ا شنا سره درست عمرا سان تېر شی بې اشنا استو ګنه یو سا عت مشکله
چې که ځان ګل یادو ی تعجب مه کړه بې ګو مان خپل سر یکتا و ینې له کله
چه ا د را لګ د تېز روفهم نه رسېږی د امعنی به په خو له چېرې شی و یله

زه د ولت له مستقبل ماضی خبرشوم
چه دحال سبق می واخست له کامله

چه مې زړه په ذ کر فکر که صفا خپل بې جهته مې هر ځای ولید اشنا خپل
لوی د ر یا ب آب حیا ت دی وبله اوړی ګل عالم یې مل لا سال که په رښا خپل
په بې شما ر(۳) غو ږ و نه آاوری آوازونه په بېحد ژ به ګو یادی په ثنا خپل
له غیر ته بې ا غیار وا ړه نفې که ځای په ځای اشنا جلوه ګوی زما خپل
د تما م زند ه جلب د د ه په لاس دی لور په اورې بې جار با مې په رضا خپل
د شاهد لباس یې واغو ست دلبری که له عا شقه یې ز ړ ه رانیو په خندا خپل
هسې زړه په شهر ګلی پاتې نه شو(۴) چه یې نه که په دیدن باندې شیدا خپل
چه مقام د با یز ید مو سی بایزید دی ګل عالم به لا ندې وینی تر لوا خپل

---

(۱) الف،ګ :- «دتوحید شراب پوروه» .
(۲) البیرونی :- «دغه هسی رنګ ساعت وی کله کله».
(۳) الف،ګ :- «په شمار»
(۴) الف،ګ :- «تپی زړه په ښار ګلی پاتی نه شو» .

پە با طن یې پەرضا وارە چار کیری — پە ظا ھر خپل سر عاجزوینی دانا خپل

دفقیر د و ات چە معر فت حا صل شو

ا و س بە څان لە یا رە نەوینی جدا خپل

تجلا بې پر دە کە ھر څای جا نان تل — نو را نی جمال یې گوری عارفان تل

معنو ی شا ە لە ھوچا مخفي نە د ی — څای پەڅای جلوە کوی پە څوالوان تل

بو پە ز رەز یات لەیو سفە بنا یستەد ی — عاشقان یې و دیدن تە د ي حیر ان تل

ھیڅ تغیر تبدیل یې نشتە پەښایست کښې — بې ز و الە بې فنا د ي، بې نقصان تل

چەلە ھسي ښە دیدنە بې نصیب شو (۱) — پس لەمر گە بەدېر کە افسوس ار مان تل

دد لبر دښەد یدن قد ر ھغە ز د ە — چەیې ز ړ موي د یپلتو ن پر او ر بر یان تل

د کثر ت پە انبو ھې بە نظر نە کە — چە دز رەپەستر گو مخ و یني یو شان تل

کە گنو ا ھې دنەلیدو وایي معذ و ر دی — نابینا یې جما ل نە گوري عیان تل (۲)

دشیطان پەدو د پە عیب یې نظر د ي — دسړي ھنر نە گو ري بدگومان تل (۳)

دجا ھل پەشان سر کښ ناف رمان مەشە (۴) — دخپل پیر خدمت کوە پە مال پە څان تل

مو تو ا قبل ان تموا شي کەسرباز یې (۵) — پر عاشق با ندي وي سر ښندل اسان تل

لاس پەلاس سو دا ژ رو کړ ە مسافر یې — دصو رت استو گنە نشتە پە جھا ن تل

ښەبیا ن لەحالە و وایە دو لتە !

چەپە داعا لم دی پاتې شي نښان تل

چەلە تا سې ا شنا یې و شو ە صنمە — خر اب دل سې نجات نەسو مې لە غمە

لا س و پښې پر بلە و ھم نە سبا کیری — دفر ا ق شپە شو ە زمالە عمرە سمە

دھجر ا ن سا عت ھر گو رەدیر مشکل دي — تر و پە څە شکل تیر یږ ي بې ھمدمە

کە مې بخت لەخوابە و یښ شي بیابە سوسم — سعا د ت جا و یدا نې ستالە کرمە

چەد ز رەویني پر مخ را خو ري نښي — ھغە ھسي رو خ پر ما نقیر د ە کمە

ھر چە نن ستا لەدید نە پەحجا ب شو — ترابد ە بې نصیب شو لە ند مە

(۱) البیرونی :ـ «شی » .
(۲) البیرونی :ـ دسړی ھنر نە گوری بدگومان تل .
(۳) البیرونی :ـ دخپل پیر خدمت کوە پە مال پە څان تل .
(٤) د مصرع دالبیرونی کتابخانی پەنسخە کی نشتە .
(٥) البیرونی :ـ «موتو قبل انت موتش کە سرباز یی ».

په باربار دي(۱) و دیدن وته مشتاق یم — دخورشید په دود راوخېژه له همه
هیڅ نقصان نه کسه دي نشته په کرم کښې — که و ځان ته مي نژدې کړې څو قدمه
دیر محنت راباندي تیر شو په هجران کښې — د وصال وعده اوس وتړه محکمه
غم دیده زړه مي د سیني په اور روسو — درد امیز توري مي زړیږي له قلمه

یو دیدن دي له اته بهشته په دی
دفقیر دولت د خوږ زړګي ملهمه

که یو سا رحم نظر وکړې کریمه — زه به خلاص شم ددوزخ له ګرانه بیمه
ددیدن جاویدان کشف راته وکړه — چه نصیب مي په حیات شي له نعیمه
له بنده لاس ته توبه دعا زاري ده — د کریم کرم دستور دی تر قدیمه
توکل باور مي درست پر تار اوړې — بل هنر کسب مي نشته بې تسلیمه
هرچه ستا له دره وجار وت کړاه دي — تل ترتله بې شوه برخه له جحیمه
په سبب د رزق مي دل تفرقه مه کړه — ته په خپل قدرت اسمان را له رجیمه
هغه وخت چه بې قوت طفل نادان وم — تا حکیم په حکمت ژغوروم له غلیمه
په زبان دعا خرکند کم ادبي ده — چه له تا د زړه حال پټ نه دی علیمه
چه احمد له سیمه پاک شي په توحید کښې — په رضا بي پر اسمان میاشت شوه دونیمه
د سوخته عاشق به سر زړه پرې زنده شي — که ددوست د ګیسو بوی راوړه ي نسیمه
چه بې زړه دایم په وصل اسوخته وی — یو ساعت ژوندون پرې ګران وی بې ندیمه
بې دیداره به ستا خوږي په نور خه نه شي — که ورکړې اته جنت او وه اقلیمه

چه بې روح له تنه(۲) د روسي وخت پرې تنګ شي
پر فقیر دولت ته رحم کړه رحیمه

ددیدن لذت دي نه بر دی د لآرامه — ستا دمخ ننداره ما لره تمامه
پیچا پیچ زلفي دي کفر سخ اسلام دی — کفر هیڅ چېرې زیب نه که بې اسلامه

(۱) الف، ك : «په باربار و دیدن ته مشتاق یم».
(۲) الف، ك :- «چه بې روح تن ددو مي».

سخندان دي په صفت و اړه عاجز دی    د بهار له گله (۱) زيات نازکا نداسه
په ظاهر عالم کښي ما هم نه شو نامور (۲)    ستا يوه ديدن بې ننگ کړمه بې نامه
چه پرسپين مخ دي زلفې لوسه کښېښوو ه    هيڅ مرغه به ځان خلاص نه که له دې داسه
پر نعمت د دې پر وروده سايل گدايم    د بل در طمع پر ما باندې حرامه
چه بې ستا دعشق شراب په اذل ښبلى    ترابده به بې بوی ځي له مشامه
دعارف نظر مدام په ترك جودوی    د صورت په ملك كښې اوسى له نا كامه

که سجده له تا پربل لورو که شرك دی
د فقير دولت پر دل باندې اسامه

زه په دا عالم پيدا په کوم حکمت يم    همېشه په د غه فکر په حيرت يم
دا جهان مثال بازار پکښې را غلی    سوداگر هردم د دم په تجارت يم (۳)
که دې دم گوهر ضايع را څخه نشي    تل په برخه بې راحتشي په عشرت يم
ددنيا تاجران واړه زيان كاران دي    زه په زړه و رځني هردم په نفرت يم
دظالم بدخصلت (۴) سدحه پرما نه شي    ثنا گوی پر زړه خو له تل دپاك حضرت يم
له نطفه عجب صورت ښايسته روغ که    زه حيران دپاك قادر په ښه قدرت يم
يو زسان خپل سر خر گند که بيا غايب شي    د جهان له هره څيزه په عبرت يم
دوحدت دباغ مرغه يم بلند پرواز دېر    نن دا رې لره را غلی د کثرت يم
روحاني وطن مې نه هير يږي هيڅ وخت    د صورت په ملك كښې بند په ضرورت يم
دې عالم لره به نه را ځم هر گز نور    په هزا رضرور گرفتار په دا كثرت يم
ا خردم به څښتن څه راسره وکه    هر نفس له دغه غمه په فکرت يم
عليين لره به ځم چه صفا ملك دی    گوريزان له دې عالم پر كدورت يم

شيخ دولت الله مې نوم دی هاتفه
پر زبان دخلق ياد فقير دولت يم

هميشه (به) ددلبر دمخ ثنا كړم    چه بې زه (به) خپل ديدن باندې شيدا كړم
چه بې مخ تر گل لطيف راته ښكاره كړ    بې تكليفه بې بلبل په دو د گويا كړم

(۱) الف، ك :- «دبهارگل» .
(۲) الف،ك :- «ننگ‌نلم» .
(۳) البيروني «سوداگر ددم گوهر».
(٤) البيروني :- «بد خصال».

د يوه اشنا نشان پکښې ليده شي　په هر ګل چه فهم به جدا جدا کړم
ميرزاګنج راته خپل کور وښوغنی شوم　بېهو ده منت به ولی د نورچاکړم
يوصفت به يې لايق راو کړی نشي　که ثناپه تمام عمر د ميرزا کړم
محقق وحدتی کان دتصوف و　په رسوزيې په همه علم د انا کړم
د کل شاعرانو شاه دی په افغان کښې　خو تعريف دده د علم دسخا کړم
تر ده به سخی نه وی هيڅ پښتون بل　يو يو بيت يې د بر ارزي که يې بها کړم

دشهيدميرزاپه صف مې کړی قادره
دافقير دولت دايم دغه دعا کړم

زه ګاه روح ګاه په بشر شم　چېرې خير چېرې شر شم
خای خای تلخ شم لکه زهر　خای شيرين شهدوشکر شم
د کثرت لباس مې و اغوست　ګهې سيوری ګهې لمر شم
دقدرت په لاس جاروزم　هر نفس ديګر د يګر شم
ګاه د رياب ګهې غوټې　ګاه دد يې دريا ب ګوهر شم
خای تبيح بدرنګ بدشکل　خای شاهد مه روی دلبر شم
ګاه بازی په لاس په پښې کړم　ګاه بې لاس بې پښې بې سر شم
ګله ګل شم ګله جز　ګله بحر ګله بر شم
ګله ځان بې پرده وينم　ګاه دځان دوړاندې سپر شم
خپل سر لوی وينم بې تنه　په بدن کښې مختصر شم

ګاه فقير دولت ځان بولم
ګاه باد شاه غنی سرور شم

د آشنا له محبته بې تدبير يم　په وصال يې د بر خوشحال، جدا دلګير يم
هرڅوخپل سرخلاصوم خلاص به يې نه کړم　! وس بندی د يازدمينې په زنځير يم

په آسان به لهدې لارې نه جاروزم　په رضا ددوست په سر ورګول خير يم
ګوم ساعت بهځبتن ساله بندهخلاص که　زه مسکين په دا جهان بېکس اسير يم
دېر کلونه سې په دا جهان تېر ېږي　د آشنا د بيلتانه له غمه پير يم
پهظاهر صورت عاجز بنده بازه شم　دمعنې په ملک ددو وارو ګونو سيريم
په خوارئ راته نظر مه ګړه نادانه　څه شونن که بې لښکره يې وزيريم
څه اوس مست راغلي نه يم له ازله　پرورده د محبت په خاصه شير يم
زه په داو ينالو بې صفت خېل نه ګړم　اراسته د ګاملانو بې (۱) تظير يم
په زارئ دعا ديدار له خدايه غواړم　په بهشت دنيا که حب وکړم اجير يم

دلاهوت په ملك يم روح من امر ربي
دناسوت په مقام يا ددولت فقير يم

زړه سې خوږوله اغياره(۲) دوبارهزخمي که يارهم
کارسې نه ګيږي له لاسه ځان سې بديشي بي کارهم
يوځل زړه له ماآشنايو ، عوس ژوندون عقل بې بيا يو و
سرمې باردی ، پرتن پاتو ،کاشکی زړيوسی د ابادرهم
پهوصال کښې بې راحت دی،په هجران کښېبې محنت دی
غم بنادی له ده رسيږی دل آرام دیدل آزارهم (۳)
جلوه که په څو څولو نه غير نشته په دوه ګونه
که روښان مخ بې اسلام دی توری زلفی بې کفارهم
يار اغيار سره يو ګوره د يقين په ستر ګو وروره
داچه ګل پرې ښايسته شو همدغه او به خښی خارهم
ذات بېحده لوی درياب دی دا فلك دده حباب دی
پورته ښکته وړاندې وروسته دی محيط يمين يسارهم
توکل وکړه مه ربړده مسبب وته کار پرېږده
بې سببه به رزق درګه پاك جنت باقی ديدارهم

(۱) البيرونی :– «په نظير يم».
(۲) البيرونی :– زړه چه خوږوله اغياره».
(۳) الف،ك :– «دل آرام دی آزار هم».



پهحر يص‌ظالم‌بدنيت‌وی کينه‌قهربی‌عادت وی　　دپر ديو به‌دښمن‌شی،خپل بهشي‌خنې بيزارهم
پهوده‌پرې‌مشفت کړې که‌بې‌هرخو تربيت کړې　　دنادان(...)زو يه‌نغوته‌نه که‌دمو رپلارهم

که دولت بې مراد گدايي دی دده توکل پر خدای دی
يو غريب جدايي حقه خوك يو کس نه مری غم خوارهم

| | |
|---|---|
| نن په زړه لرم دا عزم | يو بيان به وکښم نظم |
| په مثال با د سبا يم | دا شنا په لوری و خم |
| ديارعشق راکښې‌ميحطشو | په‌وينه‌به‌پوست‌په‌عظم(۱) |
| دديدن شراب خواړه دی | هم بې ښنبمه‌شم بې سزم |
| دعشق‌بام‌هر گو ربلنددی | نه ر سيږم هر خو غزم |
| گو ره که شوه لا که | داسو داپه زړه کښې‌پزم |
| که‌سې‌خدای کريم‌داخل که | د نبی ولی په بزم |
| تل له نفسه له شيطا نه | زيات‌په دانيت کوم رزم |
| چه‌نفس‌بند که‌زو رو ردی | تر رستم ترزنده رزم |
| يوبدو گو ره‌ديرش‌حرف شو | نقطه‌پيښ ز بر زبر جزم |
| مقصو د غواړه طلبگار شه | په‌هند،روم‌په‌چين خوارزم |
| سر گ‌حر يص‌مو ړشوی‌نه‌دی | خو بې عالم‌که دپر هضم |

دو رانديش او سه دولته!
دبز ر گانو خوی‌دی‌حزم

| | |
|---|---|
| په‌زبان دحال گو يان يم | بو وجود واحد عيان يم |
| دشاهد لباس سې واغوست | عاشق شوی پخپل ځان يم |
| غير نشته چه ما گوری | و خپل مخ ته نګران يم |
| زه‌په عرش‌کرسی نه‌اوسم | د کرسی دعرش مکان يم |

(۱) البيروني:- «پوست وگوشت‌په‌تعظيم».

مابه عرش کرسي و انخلي    لوی له عرش کرسي اسمان يم
هيڅ له ما پوشيده نه دی    همه بين و همه دان يم
په رضا سي چاري ليږی    بي شريک واحد سلطان يم
پخپل ذات يګانه شوی    له هند و له مسلمان يم
دی جلال جمال دوه خنګه (١)    په دا دوه خنګو طيران يم
سر ګنز وال نقصان سي نشته    تل باقي او جاويدان يم
نوراني بله په يوه شوه    سر تر پايه درست روښان يم
وازه غرق زما په نور کښي    پاك لطيف خورشيد تابان يم
په رڼا سي جهان پوردی    له افتابه درخشان يم
حجاب نه لرمه وزاندي    بي پرده هر خاي عوريان يم

دلبير دولت په ژبه
هر ګند وايم ګل جهان يم

هر زمان چه اشنا نه وينم بيمار شم    په جهان کښي بي نوا زار و نزار شم
دپريشان خاطر ارام مرادسي يار دی (٢)    که بي ياره بل هوس لرم زه خوار شم
ګهی مست په ميخانه کښي افتاده يم    که صوفي په لمانځه و دريږم هوښيار شم
داشنا ددرګاه خاورمه به پری نه ږدم    دنيمت په سنګ که زرخنه سنګسار شم
دخپل يار له مينې هسي ديوانه يم    که دده دکوڅی سپی وی تري به زار شم (٣)
چه نظر مي د دلبر په جمال وشی    همه دم له خپله جوده په فرار شم
بيګانګي په دوی کښي هر ګند يږی    چه ددوی له ميانه و وځي هر يو يار شم
دوحدت په مقام ځان يو اځي وينم    چه نظر مي په کثرت وشي بسيار شم
لون لول با زي کړم له خپله مخه    خيني خای ګل لطيف چيري تيره خار شم
بنايسته مخ مي په خو کسو ته پټ که (٤)    عارفان مي يو وجود وينی که عزار شم

ددولت هسي به چيری وی په ميان کښي
چه تمام يو نور لطيف ديدن ديدار شم

---

(١) الف، ك :ـ «جلال جمال دوه‌خاخنګه».
(٢) البيروني :ـ «مراد می دادی».
(٣) الف،ك :ـ «كه داد كوڅی‌سپی وی‌تری په دار شم ».
(٤) البيروني :ـ «بنايسته مخ يی په‌خوكسوته‌پټ كه » .

زه اول چه له وحدته په کثرت شوم — د ناسوت عالم مې وکوت په حیرت شوم

هیڅ له خانه خبر نه وم چه زه څه یم — د کثرت په ډېر رنګونو کښې غلت شوم

لاس و پښې مې غورزول په تاریکۍ کښې — په غفلت له خپله جوده په غیرت شوم

بې بدن(۱) مې بازي کړه په دېره کاله — پاک مولی سحر راوکه په صورت شوم

جدایي راباندې ګرانه ده له مرګه — د آشنا له بېه وصال سره عادت شوم

په خواني مې توروینته له غمه(۲) سپین شول — د بېلتون له درده هسې په سخت شوم

یو څو ورځې دنیادم راباندې پو که (۳) — د سفر زېرمه مې نه کړه فراغت شوم

ناګاه لمر د معرفت راباندې وخوت — سر تر پایه خبره یو بکل وحدت (۴) شوم

پادشاهي مې د دنیا په نظر هیڅ ده — مستغني د درویشانو په صحبت شوم

له جامه پوښیده یم په خرګند کښې — معارف ته مخ په مخ هرخای ور پیښ شوم

په توحید کښې پاک وجود بې شریک یو یم
د صفات جامه مې واغوسته دولت شوم

زه به ستا صفت په څو وایم سبحانه — ای قدیمه بې شریکه مهربانه

لکه اول وی هسې یې، هسې به تل وی — هسې کل زېږی له نادهر خیز کانه (۵)

په شمشیر د لادې غیر وجود نفی که — هسې کل زېږی له نا د هر خیز کانه

په مشرق، مغرب، یمین یسار بل نشته، (۶) — لوی هلك سود اکوی ستاله دوکانه

په وحدت کښې یکانه، واحد یو جود یې (۷) — په کثرت کښې په بېشمار، لباس عوریانه

نه هرګز له چاسره، نه له چا ګوښې — په ظاهر باطن یکتا یې بې ګومانه

پر اعلی، اسفل چه شته، سره یو ځان دی — خاق و سال جدایي نه لري له خانه

---

(۱) البیروني:- «بې دیدنه».
(۲) البیروني :- «همګی».
(۳) الف، ك :- «یوڅو ورځې دنیارابانډې پوکه» .
(٤) البیروني :- سر ترپایه خبره یوکسی وحدت شوم .
(٥) البیروني:- لکه اول وی هسی به تل وی ذات صفات ذی بی نقصان دیجاویدانه
(٦) البیروني :- په سربل نشته .
(۷) البیروني :- «یوجود دی».

لەمشر کەپوشیدە بیۍ پەخر گند کښې    وعارف نه مخ پرمخ هر خای عیان ه

بر فقیر دولت همه مشکل اسان کړه

ای کریمه خطابخش مشکل اسانه

دا رواح چه آشنایی وشوه له تنه    ه پر محنت باندې تپر ی بې وطنه

کاسلا ن سیا بیکا، د غه دعا که    یارب ز رمې روح بیرون کړه له بدنه

مکافات به له بد انو بدی نه که    چه د زړه تخته یې پاک که له ماو منه

زیرکی ځخودرایی‌مه کړه معتقد نه    چه ابلیس خوندې ردنشی په درفنه

زیاتسری‌دسیرات‌خوار پەسال‌لویې که    د ده بر خه پکښې نه وی له کفنه

بی‌سولی محبت‌واړه دزړه بت‌دی (١)    یگانه مخلصا ن خلا ص وی له و طنه

دعاشق بەزړه بی مثله او ر بلیږی    شب ورو زیې سر یکاروی له سوختنه

ملامت په دلدا د کسانو مه کړه    نو رهنر دعاشق کوم بې‌جان دادنه

ستادبوی‌پەعطرسست‌مشک‌بەیې‌هیرشی    که عطا ر له خطا را شی له خطنه

معنوی رو بنان خور شیدبه پیوه بې

دا فقیر دو لت د ې لارشم لەدید نه

چەوساوتەخرگندکه مخ دلبر سپین    نو ر انی لبا س اغوستی سر اسر سپین

دیلتون قوت مې‌نه ؤ بې‌طاقت شوم    له فراقه مې شو ل‌نور ویښتەد سر سپین

غنچەزلفې‌یې‌سیاه تری دی‌تر تو رمشک    د بدن سفید ی یې زیاته وه تر زر سپین

غلبه پرشمس قمرکه چه بیرون شی    یکتایی پر تو گ پتکی دستار څادر سپین

دوه‌نوجونه‌وبله(٢) ورغله‌تل‌جنگ که    د کفار لښکر درست تو رمسلم اکثر سپین

شب‌زنگی غلام شان وتبتی دوراندی    چەخورشیدروسی‌پری‌وکاو ی جمدر سپین

---

(١) «الف،ك» :- «بی محبته دمولی واړه‌دزړه بت دی».
(٢) الف،ك :- «یودبله».

هر عبادو او رو واغوندی په زړه کې    ددرویش په دود ما ده سخ دا ستر سپین
دبي حد په مالک کېني ډیر تر ذره کم دي    د مجاز په ستر گو لوی لیدی شي غر سپین
هر زنده شکل تور سیاه روی خني پیدا شي    غم یې تور بنایسته سپینه غم یې تر سپین
هر نفس یې د نوبې په او بو مینځه    په سیاهی دده گناه تور که د فتر سپین

ذوق خندا خوښ خاله کوه دولته !
که دې مخ شي په حساب د ورځ محشر سپین

زړه مې سوزی صبر نه که بې جانانه    په ارمان ارمان به ژاړم نه هجرانه
لکه روح چه له صورته جدا کیږی    د دلبر جدائي هسې سخته گرانه
بیلتانه یې و خپه ناخت را باندې وکه    د خوږ زړه فریاد تیر شي تر اسمانه
هر زمان له غمه ژاړم نا صبور شوم    د زړه وینې مې بهیږی له مژگانه
له فراق مې سر حلق سینه خوږیږی    د تب جن په دود مې ناو خیږی له خانه
غم اندوه یې بیاسه زور را باندې وکه    د اختیار جلب یې درست را نیو له مانه
خو دگور خاورې مې بوږې بوږې نه که    ستا دیدن به مې هیر نه شي زما جانه (۱)
په دیدن دې معمور نه شوم مخ دې پټ که    غمزده زړگی مې ډک دی له ارمانه
ودوستانو ته دې غم په کوټ کوټ ور یښود    **تا چه کوچ یو ازې وکړه له جهانه**
**د تمام عالم بنایست مخ دې خورشید و**    خلقه دې و دیدن ته ده حیرانه
هر زنده چه د اسمان خمکی تر سیا ندی    د اجل پیاله به وڅښی، بې گومانه

ډیر ارمان ژړا سو دنه لری دولته
خوشنود یې د روح غواړه له سبحانه

د دنیا پلیته ښځه ده لچنه    محبت ورسره ډیر سه کړه مسجنه (۲)
دا لولې کا سیره سحر لری هسې    خلق ورپسې زغلي رنده کنه
دلولي په سحر زیات تو غالاوه شي (۳)    د غه هسې انبوهي بې شماره گنه

---

**(۱) البیرونی :ــ «رشید خانه».**
**(۲) البیرونی :ــ «سچنه».**
**(۳) البیرونی :ــ «دی لولي په سحرزیات دی غولولي» .**

چه په زړه مې مينه نها له دحبيب شوه | دفراق برخه زما د زړه نصيب شوه
په‌حضو رچه‌مې طاعت‌وکه قبول شه | د ر يابندگی مې واړه بې تقريب شو ه
نادانان له نادا نيه ښکته د روسی | په دانش و رځه پو رته دلبيب شو ه
که و چاته نصيحت وايي لايق د ی | چه‌ددين پوهه يې زياته له اديب شو ه
کر بعيدد صوت له سر خبر نه وی (١) | د اواز خوښی يو اخی دقريب شو ه
بې د خدا ی له عنايته به روغ نشی | بيما ری‌چه ترشناخت تير ه‌دطبيب شو ه
له خو دبين‌سر ه‌هيڅ نيا ز محبت نه‌که | يګا نه محبو ب ،ينه پر غريب شو ه
د هغه کذاب‌به‌نو ر په‌سخ کښی‌نه‌وی | چه وعده‌يې دازل ورځ دتکذيب شو ه

په‌وصا ل يې شکر نه کا وه دولته !
دهجرا ن خوا ری نصيب د عندليب شو ه

سادل په‌باغ کښی وليد ه بلبل يو | و رسر ه له‌خنگه نست وشاهد گل يو
د يو ا نه دده په مينه هسی مست و | چه هرگز يې په نظر نه‌ورته بل يو
يگانگی دخپنی ځينی سر ه بنه‌شی | په جها ن ظا لم ظا لم عاد ل عاد ل يو
محبت‌به‌دېر له‌هرچا سر ه خو کړ ی | چه‌په‌تن کښی‌ژوندو ن يو لر ی‌هم دل‌يو
دهغه‌سړ ي مقصو دبه‌څه حاصل وی (٢) | چه‌پيشوا د وړاند ی نه‌لر ی کا مل يو
دراحت يار به دهيچاپه ښه نه شي | که ناګاه ور باندې ورشي مشکل‌يو
سو د مدد به‌دچانه رسيږ ی بل ته | هرسړ ی به‌دځان زير مه کاند ی خپل يو
د کريم‌تنها نعمت په‌ځان پسند نه وی | چه‌په‌خو ا ن دده شريک‌نه‌شی‌سايل يو
داحو ل نظر عجب‌دي‌يو د وه وينی | په نظر د يګا نه عا رف دی سل‌يو
دعارفسترگی بيناشو ي غبا ر کښيناست | په نظر يې د با طن وليده کل يو

دهغه قديم صفت کو ه دولته !
چه‌هم‌او س دي‌يګا نه‌هم‌به وي‌نل يو

---

(١) البيروني :ــ «كـر بعيد دصورتلـه خبر نهدی » .
(٢) البيروني :ــ «دهـغه سړی مقصودبهڅه حاصليږی ».

زمازړه له ما اشنا يو و　　وورېي تل‌تل نن‌يې بيا يو و
د لبرى جلوه يې وکړ ه　　قرا ر صبر يې له ما يو و
زړه ، ژ وندون زماستا ع و و　　ر و حا نى د لبر يغما يو و
هر چېرى د زړ و نو گنجو　　مست عيا ر شاهدپه غلايو و
بنا يسته د مجلس د يرو و　　خبر نه يم د ل سې چا يو و
هيڅ اغيا ر تر ميان ځو ک‌نه و　　د عاشق‌هر څه و و تا يو و
عشق شر ا ب ز ما له يا د ه　　نېر د ى لرې هغه‌د ا يو و
هر مو من له د ى جها نه　　د ير ار ز و ار مان‌پخوا يو و
ا نبيا ا و ليا گا نو　　گوى د حقيقت ر بتيا يو و
عزرا يل يې رو ح له تنه　　په هوس بيا د ى خندا يو و
د ادريس عيسى په شان يې　　له د ې ځمكې په سما يو و
پا د شا هان يې بې مقصود ه　　په خالى لا س له دنيا يو و
كه لښكر يې هرڅو ډېرو　　د وى يې گو ر ار ه تنها يو و
د روند ورى د ا مانت يې　　ا خرت لره په شا يو و
د قا رون په د ود يې ښكته　　تخت الثر اى ته‌په ژړا يو و
چه فا نى شو د د ه حكم　　باد آ تش خا ك‌ودريا يو و

دولت رخت‌با روهستى (۱)

بقا ته له قا يو و

زړه دغا رفا نو پاك د ى لكه مصفا اينه

اولين اخرين علم ددوى كښلى‌دى پرسينه

---

(۱) البيروني :ــ «دولت رخسار، بـار، هستي».

چه سړی عاصی فاسق که دعذاب بی تل لایق که

غضب قهر شهوت حرص(١) دی خوآست ریا طمع د ه کینه

چه د خدای له دوست جدل کړ د هغه صورت بدل که

خرسوی سوږ ك پیشولیوه شی پیل غوشکی خنزیر بوزینه

. . . . . . . . . . . . . .

. . . . . . . . . . . . . .

دادوه ورځی ژوندون دی پس بزرد سرگك بیلتون دی

هفته یکشنبه دوشنبه ثلاثه اربعه خمیس ادینه

خدای بزرگك یاد کړه په جهان کښی داپند په هر مکان کښی

بیت المقدس مسجد دی عرفات مکه مدینه

چه طواف د پاك ځای و کعبه دی پر یږ دی وایږ منه ده

بریږ به رحم دخدای و وری له یسار هم له یمینه

د دنیا طالب مؤنث دحق نر عقبی مخنث (٢)

دیو د کرزی پیژ اند مشی بنځه کو مه کوم نارینه

تل غلط به پو رته د رومی سمه لار به چیری سومی

دهغه چه عقل کم دی نر نادان احمق پارینه

طمع مه کړه له مخلوقه ای دنیکو بدفاروقه

دخبتن په لاس دی و اوړد اسمان ځمکی خزینه

خوك لو یی په اس و زین که خوك په نو ردو ر بښمین که

ددرو یش لباس نمد دی کندی ی خرقه پشمینه

---

(١) البيروني :- «غضب ، كبر، شهوت حرص ».
(٢) البيروني :- «مخنث».

بېهوده درزق غم مه خوره خوله به نه وخوري ستا برخه (۱)

سبوه غوښه نغن غوري شي وريجې پي حلوالوزينه

طالبان د حق او ر پوښتي له محنت عذاب نه تښتي

درد بلا بيماري فقر دد وی برخه ده ديرينه

لکه مرغه چه پر هوا کښي شمس قمر پاس پر سما کښي

په قدرت يې هسې د روسی په درياب جهاز سفينه

يو دولت په خو لذت کښي مخ خرګند که په کثرت کښي

د هرچا له بوه خدايه صحی شوې ده روزينه

| | |
|---|---|
| دد لبر د مخ رڼا ز يا ته له ما ه | سبحان يې ځکه نه ځي له درګا ه |
| هر نفس په ګاته د پر عاشقان وژني | ترس يې نه شي د مظلوم دزړه له آه |
| له عمل باغ محل بهشت رغېږي | نن هردم مشغولي کړه له الهٔ الله |
| چه د حق په نور دانا بيناشنوادي | حقيقت مه ګڼه هيڅ پټ له اګاه |
| هر چه زړه په دنيا وتړي احمق دی | بې نصيب شود باقي جنت له جاه |
| ددنيا تر لمر خاته پرې واته واړه | د عارف په نسبت کم ارزي له کاه |
| ګودګان په پادشاهي منصب هوس که | د دانا په نظر جاه بد تر له چاه |
| په هغه جهان چه مرګ بيماري نشته | د ګدای ورځ (ده) زياته له پادشاه |
| چه تمامه دنيا نومړی حق لاشی ده | په لاشی محبت ولې کړې ګمراه |
| هيڅ کفن لرمې مه پر پرده مال باردی | که دسود خبره نغوږې له نېکخواه |
| دزړه حال به په کاغذ په خه دود کو بښ شي | د معنی ميدان د پر او پرقصه کوتاه |
| ددنيا بې وفا سود و زيان خه نه دی | يارب ستا له رحم مه شم بې پناه |

آخرت د روح ملک د پردی دولته !(۲)

چه خيمه په خيمه پوردی له سپاه

---

(۱) البيروني :ـ «بيهوده دزرق غمخوری خوله به نه وخوری ستا بخری ».

(۲) البيروني :ـ «آخرت دروح ملکښه دی دولته　　چه خيمه په خيمه پورځی له سپاه».

زړه په ذکر په فکر به — تن مشغول په عبادت به
په همه حمد و ثنا کښې — د د لبر د سخ صفت به
په د يدن يې باور و کړه — تر آ ته وا ړه جنت به
يو په يو تر کل خو با نو — په صورت هم په سيرت به
لذتونه رنګا رنګ د ی — نشته هيڅ تر معرفت به
د د نيا له کارو باره — لمونځ روژه خلوت عزلت به
چه تندرست دی طاعت نکه — ګرفتار شوی په علت به
که قوت کرد کار د ر که — له صحته دی زحمت به
په خلوت کښې حاصل نشته — د خاصا نو تر صحبت به
په زړه ياد د دوست سا کن کړه — د شيطان لښکر غارت به

په داهو سره دپر افغان کښې
خدا ی که شعر دد ولت به

د ل ازارد سور پلا ر پير بدنهاد دوي — که په ذات اصل نسب سلطان زاده وی
په خوانی به يې مر ګ بو ځی له جهانه — په صراط باندې به خوارستړی پياده وی
هرسړی چه يې خدمت نه که عاصی دی(۱) — خو ک چه ناست دپير کامل پر سجاده وی
دنيا ست مشکل به واړه پرې اسان شی — چه قدم يې ثابت ايښی پر جا د ه و ی
له سفله دنيا خلاصی په دعا غواړی — هر مومن چه ا خرت نه اما ده وی
فسق ګناه به يې دواړه خدای معاف که — که منکر په امانت نه شی واپه وی

دنبی ولی نشان د دی دولته !
تکبر لو يی بعض نه لری ساده وی

هر چه زړو نه خوږوی بدر ګ دی(۲) — په نظر د مخلصا نو کم تر سګ دی
دکامل له نصيحت يې سخ ستون نه شو — دهوا په نغو ته دې(۳) داړ بو ځک دی

(۱) البيرونى :- «عاصى شي ».
(۲) البيرونى :- «ظالم بدرګ دی ».
(۳) البيرونى :- «ځی ».

یک رنگی ښېګڼه طمع څنې مه کړه — سرتر پښې دپړانګ جنه په شکل بر ګ دی
قناعت صبر پر ې ګرانشی زهیر یږی — بېهو دمسر ګردان خوبن ګرځي لګ لګ دی
چه دزړه حقیقت پټ لری له بازه(۱) — اشنایی ورسره نه وکړه و تلګ دی (۲)
دفرحت آواز به هېڅ څنی وانه وری — تن , سرو بې زخمکه بیخا رګ د ی
بدګومان بدا ندیش مه اوسه نادانه — و هرچا وته نژدې خدای ترشهر ګ دی
بې ګناه یې دفقیر مومن زړه خوږ که — د همه بد یو سرد ظا لم پګ د ی
ترمنزل به ژر هغه سړ لک و رسی — چه مدام بې دخپل فکر په پښې تګ دی
هرچه نن دمعرفت مقام حاصل که — ترسولی پوری سخ رونی په ده جګ دی(۳)

په صورت دولت پلار نو هانی متی(۴)
دمادر اصل یې بزرګ سیدو رد ګ دی

چه ظاهر باطن موجود نشته بې خدایه — زه او ته آسمان او ځمکه څه دی ځایه
دتوحید پرلا ربه یو قدم وانه خلی — څود شک اغزی و نه کاږی له پایه
عارفان یې هر نظر په هر ځای ګوری — د و حدت ځېره مخفی له خود نمایه
مجازی حجاب که لرې کړې دو راندې — مخ د حقیقت به و وینې ته بر ملا یه
دکامل خبرې نغوږه پرې عمل کړه — دخپل زړه په نغوته مه درومه خودرایه
له شاهی به شاه بېزار شی چه و وینی — مرتبه په حشر کمه له ګدایه
ددنیا پادشاه به پس له مرګه وایی — ستاو زر څنګو نه وسوزی همایه
که پرما بدبخت تاسیوری نه وی کړی — په نن سخته ورځ به خلاص وم له وای وایه
دعاصی ژ به به ګونګه شی په خوله کښې — چه فرښتې په بدرنګ و وینی له ورایه
په هیبت (به) بې پوښتی چه خدای دې څوک دی — دین دې کوم امت دچا یې راته وایه
چه ځواب ثابت ورنه که دی به و وهی — په ګذار (به) یې که تبر تر تحت الثرایه

(۱) البيروني :ــ «له یاره» .
(۲) البيروني :ــ «دی تګ دی».
(۳) البيروني :ــ «په دوه جګ دی».
(٤) البيروني :ــ «په صورت ددولت پلار لوحانی می ».

که طلب په اخلاص و ئړي دکامل ته — له دو ني علم ( ۸ ) بيا موسي حاصل ته
دباطل ستر کي به خداى هسي شان در که — چه همه عالم به جز ويني حق کل ته ( ۱ )
همېشه به ددوست ( ۲ ) مخ په زړه کښي ګوري — په هيڅ وخت به نظر نه کوي پر بل ته
پر هرڅيز چه فهم و ئړي دفاروق شان ( ۳ ) — په يوه نظر به بيل کړي حق باطل ته
سر ګ نقصان زوال به نه موسي هيڅ که — ترا بده به باقي اوسي خوښن تل ته
درست ظاهر باطن به واړه يو ګل ګوري — که بلبل غوندي عاشق شي پر پاك ګل ته
دمردانو شان مدام جهد اختيار کړه — بي سولي غير هيڅ مه پر بږده پر دل ته
د تلقين نور راو نيسه له کامله — غير بي خدايه کړه واړه پري قاتل ته
په حيات به له توحيده بهره مند شي — سل هزار هزار به يو ويني يو سل ته
په اسانه لاره مه خه لکه! وړکي — که عاشق بي ندم کښږده پر مشکل ته

اى دولته پښيمانى ارمان به نه کړي
که عمل په نغوته تل کړي د کامل ته

که دزړه ( ۴ ) آينه صفا کړي له ګومان ته — روحاني دلبر به وويني عيان ته
هر نفس به يي دپاك مخ ننداره کړي ( ۵ ) — په دووم به نظر نه کړي په هيڅ شان ته
په ديدن به ئي مست اوسي ترا بده — التفات به د زړه نه کړي ( ۶ ) په جنان ته
که او به دحيات و ښبي نور به نه مري ( ۷ ) — خضر الياس غوندي به پايي جاويدان ته
چه حق تل حضور ناظر ويني احسان دى — يو ساعت غافل ( ۸ ) مه اوسه بي احسان ته
که دزړه پر بېحد باغ دي نظر وشي — تر يوي غنچي به کم ويني اسمان ته
مشکلات به د جهان در ته آسان شي — که پر خداى رسول تحقيق راوړې ايمان ته

---

(۱) دابيت دالبيروني کتابخاني په نسخه کي نشته. ـ
(۲) البيروني:ـ «يار» .
(۳) البيروني:ـ «دفاروق ته» (٤) البيروني:ـ «ارسي» .
(٥) البيروني:ـ «هرنفس به يي ويالا جمال ته ګوري» (٦) البيروني:ـ «هرګز نه کړي» .
(۷) البيروني :ـ «مرګ دي نشته» .
(۸) البيروني:ـ «غافل» .

یکرنګي اخلاص اختیار کړه که دانایې — هیڅ مقصود به حاصل نه کړې په خان ته(۱)
له تنا هم به دې پراوه د دوزخ شي — که دلو هښت(۲) مقدار نظر وکړې په خان ته
ګل د حق په ذات کښې محوه کړې چه شته څه — یو وجود حقیقي ګوره درست جهان ته
دیقین(۳) په ستر ګو لور په لورې ګوره — ذات واحد بې رنګ بې مثل بې پایان ته
چه دده په وصال هست جدا نیستېږي — له(دې) هسې دلبر ولې کړې هجران ته
ځای په ځای در ته حضور دی نه یې وینې — ترډېدن شه د شیرین اشنا قربان ته
که دامان له باره ګردن خلاص کړې — بیا به پس له سر ګه نه کوې ارمان ته

خان جهان په لااله نیست کړه دولته !

دجانان په ستر ګو ګوره خپل جانان ته

دمحب پر زړه کښې حب وی د دلبر پټ — لکه وی په آهن کښې آذر پټ
همنشین یې له احوا له خبر نه دی — دی مدام پر مخ لری د دوست نظر پټ
د عاشق دل داده زړه په حکم نه دی — د خپل یار په کوڅه ئی ګوی ګوزر پټ
زړه ورندون په باد د لارې ورکه — که د لدارلره یې با د دوست خبر پټ
د باقي معرفت هسې روښنائی ده — چه په نور کښې یې دی ستوری، قمر، لمر پټ
لکه لمر د پیاسه وځېږی پر سپهر — په رڼا کښې یې نجوم شي سراسر پټ
لکه بې پایان دریاب څاڅکی مخفي که — هسې لوی د رخت کړی دی ثمر پټ
استر ذهب ذهاب مذهب رسول ویلی — له اغیاره خپل دین لار لره هم زر پټ
په یوه درم به سزد هزار بیا موسی — چه د خدای و طالب خیر کاندی ورپټ
ایما ندار مومن په غیب معتقد وی — بې ایما نه منافق شك که په حشر پټ
آسمانو نه غرونه ډېر دی په باطن کښې — د غافل له ستر ګو شوی دی اکثر پټ
ظاهر بین نادان ظاهر سود زیان ګوري — باطن بین عارف د انادی په خطر پټ

---

(۱) البیروني:- «په ضمان ته». (۲) البیروني:- «دوېښته مقدار».
(۳) البیروني:- «دمعنی».

ریاني ذکرپه زوره کم ادب که — خاصان نومه په زړه کښې لولی‌دا کبر یې
په بدن کښې سته‌الطیف‌یو بل‌بدن دی — لاس ویښې لری خوله‌ستر کې‌مخ غوږسر یې
دعارف‌ستر کې بیناشوې‌غبار کیښناست — داورواح په‌ملك کښې کوری‌ئ‌پر کشور یې
دخپل مخ په‌ننداره یې‌شوق‌پیداشی — دا ت‌ساذج په دسوت‌راغی دسرور یې

چه‌درو‌ح پربقا یې شك که دولته!
دعغه پر خدا ای ایمان‌نشته باور یې

دعارف په نظر نشته بې دلبر هیڅ — مشر دان په‌دا معنی نه دی خبر هیڅ
ترعغه‌سخت بل‌څوك‌دی په‌جهان کښې — چه پر هسې بنه مخ نه‌لری‌نظر هیڅ
ددلبر دمعرفت پر‌خو نبی وي — حورقصور غلمان یې نه دی برابرهیڅ
دبنه حسن کوی بې راتیوله خوبانو — تردوست نشته بنایسته پربحروبر هیڅ
هرعارف چه دد یدن تجلا کوری — په نسبت یې روښنا یې دقمر شمر هیڅ
پرما په دبنه طعام قدر هیڅ نه وی — د تا تیری په نظر آب دکوثر هیڅ
له‌داو بنکو په‌خای دروو ری‌له‌ستر کو — دسنگ دل پردلی په‌نه وکه اثر هیڅ
که قانع یې‌له مخلوقه طمع مه کړه — یې رازق به تا هیڅوك نه که خبر هیڅ
قناعت تل باقی کنج د یې پیغمبر وي — دقانع په نظر کنج د سیم و زر هیڅ
هر نعمت دولت دحق له دره غواړه — منفعت به حاصل نه کړی په بل در هیڅ
په زرگو نوا نبیأ تردنیا تیرشول — محمد غو ندې بل نه و پیغمبر هیڅ
ابراهیم خلیل الله محب نبی و — په دوستی دحق پرې مرگ ود پسر هیڅ
د قضا غشی چه وخیژ ی له شسته — سود فایده دوړاندې نه لری سپر هیڅ
مسکینان‌به‌خو‌بن‌دعرش‌په‌سایه‌ناست‌وی — هغه‌ورخ چه‌سیوری‌نه‌وی‌په حشر(۱) هیڅ
هرساعت پرې باندې څوبلا تیر یږی — د بیمار له حاله نه دی څوك خبر هیڅ

(۱) البیرونی :ـ «په محشرهیڅ».

لکه خدای پرځپل بنده با ندې مین وی | هسې حب پرفرزند نه لري ما درهیڅ
په سعیدفرزند عقه‌د ی‌په جهان کښې | چه له امره بېرون نه وی دپدر هیڅ
دلبوه په دودجاروزی په داکل کښې | داستاد سبق بې نه دی کړی زبر هیڅ
لکه سپی چه په حرامو آموخته دی | له مرداري جیفې نه کوی حذر هیڅ
په ریا نفاق بې عمر تمام تېر که | په اخلاص عبادت نه که داکبر هیڅ
په تش لاس‌به‌شرمنده کوزلره دروسی | ددنیا سود به بې کل شی سراسر هیڅ
دظاهر په کار هوښیار موی‌شکافی که | دباطن نقصان نه وینی کورو کر هیڅ
بې همت پر سړی خلی لکه غر شی | دهمت پر ځښتن خلی‌غوندې غر هیڅ

وجاهل ته نصیحت مه کړه دولته
په خبره نه پو هیږی لکه خر هیڅ

هرسړی به عاقبت که له دنیا کوچ | له فانی دنیاتحقیق (۱) دی دهر چا کوچ
نن توښه ددین تیاره کړه که سړدیې | اوازه د تحقیق شوی د صبا کوچ
که نن شب تیاری نه وکړې بیغم شې | بیابه ډېر ارمان کوې چه شی فردا دوچ
دبل‌حال و کوره پندواخله هوښیارشه | نن یاران درځخه ولاړل کانده ستاکوچ
که ساعت درحلت درشی غمګین مشه | له فانی دنیا دی کړی انبیا کوچ
هیڅ چاره دروزازل حکم نه شته | پرآشنا باندې مشکل دی دآشنا کوچ
که‌دی‌سل کاله شی عمرپه دنیا کښې | داجل قاصد به در شی اخربیا کوچ
هرنفس‌په یادکښې اوسه په طاعت تل | بې توښې دلارې نکه هیڅ دانا کوچ
سپك‌آزاد پرلاری‌خی‌مشکل‌بې‌نه دی(۲) | دمخلص عارف دی‌څه شکل‌ښه‌زیبا کوچ

په خدمت بې څوك زهیرنه‌شي دولته !
هسې شان وی د پرآسان داولیا کوچ

نشته اول آخر نهان ځر ګند | بې دبې حدله شان نشان ځر ګند(۳)
ذات‌ساذ ج‌چه جلوه‌و کړه‌دمخ | وکل عالم ته بې که خان ځر ګند

(۱) البیرونی :- «بی‌شکه» .
(۲) الف ،ك : - «سپك آزاد په لارځی‌مشکل نه‌دی ».
(۳) البیرونی :- «بی‌دبیحد عالم ته‌یسی ګه‌ځان ځرګند ».

مست شوه عاشقان له شوقه دده ‏ ‏ و ده هرچا جدا بیان خرگند

چا وې سبحان ما اعظم شانی ‏ ‏ چا وو ې دی حق عیان خرگند

چا وې لیس فی جبتی سوی الله (۱) ‏ ‏ چا انا الحق وې هرمکان خرگند

محمد وې زه یم احمد بلا میم ‏ ‏ محو سې میم که د رمیان خرگند

بیایې وې من راني فقد رای الله ‏ ‏ شه محمد د حق نشان خرگند

د معشوقانو شان یې وکړ ظهور ‏ ‏ رایې نیو دل په عاشقان خرگند

په زلف و خال و خط یې بند کړ همه ‏ ‏ په صورت ښه د دلبران خرگند

دا رموز ده وعارفانو ته کشف ‏ ‏ چه لاجبت وش جهان خرگند (۲)

په لون لون خپل صنعت که مدام ‏ ‏ په هر زمان په هر زبان خرگند (۳)

هیڅ یې حجاب نه دی په سخ کښې غیر ‏ ‏ جا بجا شوی دی چنان خرگند

دولته ! گوره تل وسخ ته ددوست

بل وجود شرك گنه گومان خرگند

ای چه دایم یې جا بجا خرگند ‏ ‏ نه وینم غیر یې له تا خرگند

مست یمخود فتاده یم له جهانه ‏ ‏ څه عجب سخ دې که وماخرگند (۴)

هر چه یې تا دیگرو ینی موجود ‏ ‏ هغه دی عین وار خطا خرگند

هغه دا نشته هیڅ له تاسره بل ‏ ‏ له همه شر که یې جدا خرگند

چه په توحید د حق نظر لری ‏ ‏ تل کل خلك پټ وینی خدا خرگند (۵)

چه له قربته نن خبر وی د دوست ‏ ‏ ورته دی تل کوی ندا خرگند (۶)

په هر ساعت چه ورته غږ که سړی ‏ ‏ کوه د ایم کوی صدا خرگند

په ښه الحان یې شه شتر هم مست ‏ ‏ چه هدا گړ وکړه هدا خرگند

---

(۱) البیرونی:ــ «چاوی لیس فی جبتی سوایی».
(۲) دابیت دالف،ك په نسخه کی نشته.
(۳) البیرونی:ــ په هرزمان په هرزمان خرگند.
(٤) الف،ك :ــ وماته خرگند .
(٥) دابیت دالبیرونی کتابخانی په نسخه کی نشته .
(٦) البیرونی:ــ «کل خلك پټه وینی خداخرگنده».

سر دباطن به شی و تا ته کشف | که ته با و رلري پ‍ه دا خرگند
پر سواحب نظر نه که هرگز | هر چه عاشق دی پ‍ه لقا خرگند
دا هسی مخ به چا لید لی نه وی | بي روا پ‍ه دی یار وا خرگند
چه حقیقت و ما عیا ن که دتا | زیات نور خه‌زبه) وایم تردا خرگند

دولته! دل بي پر نعیم مه تړه
دا جها نتي دی فنا خرگند

هیڅ خصلت دسړی نشته تر حسدبد | تر حاسد ناپکار هیڅوك نه دی ردبد
چه حسدچاپه مال یاپه منصب که | هغه کس خرگند دښمن دی داحدبد
تر قیامته پري عمل دبدو کیښی شی | چه دخلکو پر لار و تړی څوك سدبد
هغه وخت که توبه که فایده به نه وی | چه په غاړه بي که طوق دمن مسدبد(۱)
دادستور دخدای قدیم او سنی نه دی | له نیکا نو سره ښه کو ی له بد بد
په‌بنایسته مخ(باندی) هرخوك مینه كاندی | محبت دهیچا نه کیږی پر خد بد
حق کریم بي په کرم ناخیز که وار ه | رو ز(و) شب بنده کوی دبر بي عددبد
نوره گناه که سړی که زیات به بیامرزی | شرك گناه په تر آن یاد هرکور تر حدبد
چه دنیا که پري حاصل عقبي حق بایلی | هغه عقل دی زیان کار هغه خرد بد
همیشه دحیوانغو ښه بي خوراك وی | بد خصا ل در نده نشته ترا سد بد

ای دولته له ظا لمه لري اوسه
دریدن کشتن بي خوی دی لکه دد بد

ای طالبه دمقصود خپل پر بیچون تن توکل کړه (۲)
پر خالق رازق بي مثل بیچکون تن توکل کړه
ستاقسمت به دی هیر نکه پر آسمان دی که پر خمکه
پر دایم پاس گرزوني دگردون تن توکل کړه
اندوه هیڅ مه خوره درزق ته لري تل اوسه له فسق ته
ستانصیب به دی هیرنه که ،ته افزون تن توکل کړه

---

(۱) البیرونی :ـ «مسدبد».

(۲) داغزل دالبیرونی کتابخانی په نسخه کی نشته .

خپل قسمت نصيب به موسي که ولاړ اوسي که درومي
که حريص بد مذهب نه يې کمين دون تن توکل کړه
سم تا بت پر لاره دروسه تل شراب دوحدت شوسه
همېشه د د غې لا ر ې رهنمو ن نن توکل کړه
رازق ستادرزق کفيل دی هم غمخور هم دی وکيل دی
که کم بخت کم همت نه يې رد ملعون نن توکل کړه
چه په رزق پسې پريشان دی تل يې کور دباطن ورانږدی
پا خه پند و اخله سړی شه تېر ستو ن نن توکل کړه
چه پر خدای يې توکل ؤ دل مشکل يې شوی حل ؤ
حکايت د موسی واوره د هار ون نن توکل کړه
له غمه گناه تا بې شه پرظالم شيطا ن غا لب شه
ستا جا مه په شك نجسه آب صا بو ن نن توکل کړه
د مقصود پرلار ې خوځه دهوا په نغوته مه خه
پر هغه جها ن چه نه شي ته پر سغبو ن نن توکل کړه
چه په نغوته دشيطا ن شي تخت الثرای لره روان شي
قصه ونغوړه په غو ږ و د قا رو ن نن توکل کړه

ای دولته ! که بنيادې په با طن علم دا نا يې
دخپل زړه په لوی سحل کښې اندرون نن توکل کړه

که دحق په طلب نيست کړی د بشر سر
په بدلون به يې باقي مو مې د گر سر (۱)

نه به مر ی نه به زړيږی تل به پايې
همې شا ن به بې نقصا نه که حق د ر سر

که يې سجود په توحيد کښې در حمان کړ
په د غه سر به با قی و گټې هر سر

که شيطان ور ته غرگنده و سوسه که
د ی دې لا په توره ووهې پر سر سر

ته يې نن دحق په لاری کښې نفې کړې
نا دان خپل خرخ کړی دی په آب زر سر

عزرائيل (به) يې په زور آخر رانيسی
ته په سحبت کښې وراندې کړه خپل ور سر

(۱) داغزل د البيروني کتابخانې په نسخه‌کې نشته..

بیابه پس‌له سر که د‌بره‌پښیمانی کړي — که په محبت و ر نه کړې د دلبر سر
سوتوا قبل ان تمو تواشه که دانایې — نن له‌مرگه‌وژاندې خلاص کړه له خطره‌ر
دل بستی په دنیامه کوه بې خدایه — دده حب حدیث یاد دی د هر شر سر
چه‌دحق له‌دره و جار وزی روحی — دهغه حریص به میشتشی په هر در سر
هر چه خوښنودی حاصله دحبیب که — به سر دیده‌به د گور کښېږدی بې‌درسر

غوث چه عاجزی اختیاره که دولته
خدای کریم به بې بلند که په حشر سر

چه دذکر په تیغ پرې که دغفلت سر — وذاکر ته به خرگند که پاك وحدت‌سر
کم‌ناسی‌نبستی اختیار کړه کوښه‌او سه — په هیڅ وخت‌بېرون مه باسه له خلوت سر
عارفان بې خدایه حب په غیر نه که — ترك دنیا په حدیث یاد د کل طاعت سر
پر دنیا بې وفا سینه د کړ و نه ده — دده حب رسول یاد کړی دبدعت سر
د جهان حقیقت و گوره بیدار شه — دغفلت له خوابه‌هسك کړه په عبرت‌سر
چه‌دخدای‌رسول‌په‌امر کښې‌تل اوسی — تر د برچا به بې بلند وی په قیامت سر
ته گدای به له‌بندگی چیرې‌خلاصیږې — چه شاهان بې ایستی نشی له خدمت سر
هغه کس به د دین لویه بر خه بایلی — چه ودنیا دار ته کوژکه په حرمت سر
که‌یو سر ددوست په محبت نفی کړی — ترهزار ترکروړ به‌بیا سوبی‌ژ یادت‌سر(۱)
د غیرت بادبه بې ژر نبستونابود که — چه په ظلم کبر هسك که په شدت سر
ددنیاپه‌کم‌خرشی اند وه‌گین مه شه — د ښښتن معرفت د ی د کل نعمت سر
درویشی‌نبستی‌راحت دی په دنیا کښې — وا نکړي په‌مال مطاع ددرد محنت سر
فرزندان ددین پرلار لوی غلیمان‌دی — مور و پلار بې بکلوی په شفقت سر

---

(۱) دابیت دالف،لا په نسخه‌کی نشته.

مشقت د ځنکدن به پرې آسان وی چه وعزرائيل ته ور په ارادت سر
تل تر تله به ژوندون باقي بيا مومې نن قاني کړه دځپل دوست په محبت سر
جدا بي د جمله شغا وت پښه وی پاك د يدن د دلبر دی د سعادت سر
و رقيب ته دواړه لاسه په قهر ببړ ی ځپل محب ته ښو روی په عنايت سر
بر دبارې دقلم شمعې شان اختيار کړه چه شب روز بې پرې کوی په ځو کرتسر
پر رڼابه جهان شمع شان روښان که چه دخدای پر لارې کوي و بازی صورتسر (۱)
دقلم له خولې خوش خطه حرفونه ريزی (۲) چه استا د بې پرې کوي په هر ساعت سر
د عغه عباد ت اجر به څه مومی په ريا چه دو زوي رسم وعادت سر
سر و تخلقت د مارزده کړی بويه چه دم کړی (۳) ته بيرون که له حضرتسر
وحده ،گواهی دحق بېکانکی لی هرگياه چه که له ځمکی راو ريت سر
دو رنز ديك غيب عالم به ښيرو وينی په زانو باندې كه کښیږدی په فکرت سر
په قران کښې حکمت ياد خير اكثير دی معرفت علم تو حيد د هر حکمت سر
بې جهت به و حدت سخ و رته څرگند که دتلتين په تيغ که غوڅ کړې د کثرتسر (۴)

په هوس به بې پښتو ورله بو سی
که بې نيازد لبر قبول که ددولت سر

که هر څو ډېر ښايسته دی د کثرت باغ يو په زره ځنې به دی دوحدت باغ
دوحدت باغ به دې هم په نظر سور شی که کامل دروښيی د سکونت باغ
که په درست جهان وگرځې تفحص کړې تردا به،به نه مومې په ښه زينت باغ
په حرص په نا صبری راحت عذاب شی گل گرانی په صبر شی په لوی همت باغ
هرساعت به شکريه کړې زړه کښی ډېر ډېر که ځښتن در ته څرگند که دجنت باغ

---

(۱) الف،ك ،چه دخدای پر لارو بـازی دصورت سر » .
(۲) البيرونی :ـ «دقلم له خولی خوش حرفونه ريزی ».
(۳) البيرونی :ـ «دم گيری».

معرفت وریا بې مشقته مونده نه شی (۱) — په ضرور خواری حاصلېږی په محنت باغ

زیاتسری د مال په جمع راحت غواړی — بې قانع نه مومی څوک د قناعت باغ

که په ریاضت بې و نه پرورده کړې — رنګارنګ میوه به در که د پیر لذت باغ

همیشه منت دار او سعد ګبتن خپل — چه پرتادی عنایت که درویت باغ

د دیدار باغ میوه خو بې بخښی تل — په دادو دهرګز بل نه لری فرحت باغ

په رضا میوه پخپله خنې ریږی — چه کامل شو رسیده شی په غایت باغ

نه د باغ په تند اره دې محبت دی
پاڅه و ګوره نن راشه ددولت باغ

ای د نفس په بد خو یو نو نسبی معروفه — راسته دین رو خوته و ذکری بې ونو فه

ددنیا په کار کښې خه شکل ګرم ګرځې — او د دین چارې دې و ازه کړې سو تو فه

یکبا ره د نفس په زبر مه پسی مه خه — شرمه و کړه له کر یم رحیم رو و فه

محبت په د نیا مه کړه که دین دا ریې — دین د نیا سره هرګز نه دی ما لو فه

دد نیا په کارو بار به نظر نه کړې — نه احوال د عقبی شی در ته مکشوفه

باقی ګنج دقنا عت که پیا مو مې ته — دحرص ولی به وکاږې له جو فسه (۲)

په دا عسی عمر هیڅ اعتبا ر مه کړه — چه دې څراغ دژوندون مري له یوه فو فه

آخرت لره به سپک بې غمه دروسی (۳) — که د امانت بار ګوز کړې له کتوفه

سر بازی اختیاره کاند ی ترسر تیر شی — څوک چه خوری دچا نعمت بخښښی علو فه

د سړی له غم اندوه دردچاره نشته — پر فلك چه لمر خلاص نه دی له خسوفه

د کاغذ توریو کتاب به مدام نه وی — لو له تل د زړه کتاب بی صوت حروفه

(۱) البیرونی:ـ «معرفت وریابی‌مشقته مونده‌نه شی» .
(۲) البیرونی:ـ «له خوفه» .
(۳) البیرونی :ـ «آخرت لره به‌سپك باردرومی» .

تل خدمت د کاملا نو کړي بویه　چه ثنا یې په کتاب کښې ده موصوفه

که دخدای رسول دوستي غواړې دولته

په شرې خاتما راضي اوسه له سوفه

داجهان واړه له خانه که پیدا حق　وهرچا نه که په هرخه کښې ندا حق

درست جهان یې آینه که بې زنګاره　په هر لوري خپل مخ ګوري هویداحق

چه یې مخ تابان په آینه کښې وکوت　خودیه خود شو په خپل خان باندې شیداحق

تجلا یې نوراني وخان ته وکړه　آشفته په خپل جمال شو په عمدا حق

په توحید کښې غیر جودمو جودبل نشته　خای په خای چاره کوی جداجدا حق

د کثرت بازار یې جوړ که په خولونه　له هر جا سره بخښه که سودا حق

هر زمان یې دباطن په ستر کو ګوري　وعارف ته مخ ښکاره که هویداحق

همېشه د عارفانو په بهشت کښې　خپره نور تجلاده په خنداحق

ددوعم جود لیدل یې شرک عظیم دی(۱)　پټ خر ګند ظاهر باطن دی نن فرداحق

که حق د ګفتن وهسی مې ووې　نور خر ګند وتاته خه وایم نرداحق

ای دولته غیر مه ګوره موجو دهیڅ

دهر چا دی پیدا ینت له ابتدا حق

عجب لوی بیحد دریاب دی بې پایان عشق　دومره خوك مجال لري چه که بیان عشق

مګر دی بې رهنما شي چاته کاندی　له دې پټه ګنجه لږ علم عوریان عشق (۲)

هر چه شته اول اخر له ده پیدا شو　هم ظاهر باطن تحقیق د هر خیز کان عشق

له اوله یې بنیادیو خیز زیات نه و　اوس ښکاره شو په جهان په خوالوان عشق

خوك عاشق پرسیم وزر پربنه جامه وی　دچا دی پر باغ میوه پر ښه ایوان عشق

(۱) البیروني :ـ ددوهم جو دلیدیې لوی شرك عظیم ګناه دی» .
(۲) البیروني:ـ له دی پټ لږ علمه عوریان عشق .

خوك عاشق شو ددنیا په نعمت رنګ رنګ — دچادي پر حور قصور باغي غلمان عشق
خوك عاشق پر اسپ وزین پر فیل شتر دی — دچا دی پر زن فرزند لکه حیوان عشق
خوك عاشق د جنت په ډیر نعمت دی — دچادي پرخدای کریم رحیم رحمان عشق
د فاني څیز محبت هم ژر فاني شي — پر باقي دایم باقي وی جاویدان عشق
نور همه عالم چه شته دده رعیت دی — پرهر چا باندي غالب دي مست سلطان عشق
محبت له هیچا سره کړه یک جهت شه — که رښتیا پر زړه لري دپاك سبحان عشق
ته طالب ګڼې مطلوب ګڼې ربیار شي — په خولو نه بازي له په خوخو شان عشق

په دوه نونه نور څه هیڅ نشته دولته
په همه صورت ظاهر دی پاك روښان عشق

طلب نه که دسبحان خوك — نه که نغوته درحمان خوك
په محشر به شرمنده شي — نه به وی ترده پښېمان خوك
پاتي شوني هرګز نه وي — په دنیا ګڼې جاویدان خوك
سرګڼ بیلتون دواړه مشکل دی — دوي یې نه ګڼي اسان خوك (۱)
چه سرګذشته دي پري به نه ږدي — پري حب نه ده دانا یان خوك (۲)
باشنده پکښې تل نه وي — فقیران نه ملوکان خوك
چه دا ناوي هرګز نه که — په فاني پسې ارمان خوك
تل باقي ژوندون به موسی — که خپل سرکه قربان خوك
چه دوستي کوي بې خدا په — تر هغه نشته نادان خوك
د نیکانو په راه نه ځي — چه پیرو وي دشیطان خوك (۳)
شیطان بد ددین دښمن دی — ځنې نه مومي امان خوك
مخلوقات ډیر بې پیدا کړه — بهتر نشته تر انسان خوك
هر چه عدل په رښتیا که — همسر کم دی د پادشاهان خوك

(۱) الف،ك:ـ «دوي يې رونه‌ګڼي آسان‌خوك».
(۲) البيروني:ـ «پوزنده په داجهان خوك».
(۳) الف،ك:ـ «دنيكانو پېراه‌ځي چه پسرووي‌دشيطان خوك .»

د سفر تیار ی نه کړه — مګر خپنی نیک بختان خوك
داجهان یو فانی سرای دی — پر ی حب نه کاداناپان خوك (۱)

چه ځان بیست نه که دولته
بیا به نه سو سی یزدان خوك

د زمزم په آب به نه شی کبرجن پاك — د توبې په آب چه نه که ځان خچن پاك
د تو بې په آب بدن هسی صفا شی — لکه شی په آب صابون نمری خیرن پاك
چه دا ګر په حضور بې د حق نام یاد نه — زړه ژوندون ز به یې شی تمام بدن پاك
دهغه سړی به زړه صورت پاك نه شی — چه له کذبه سر که نه که خپل سخن پاك
له هر دم غسل او دس په آب زمزم که — بې ر ښتیا به هر ګز نه شي د ر و غژن پاك (۲)
د سو سن چه ګناه ډېر هو ی دنیا کښي — په سر درد په نه شي په ځنګدن پاك
سلایك به یې عذاب په ګور کښې نه که — چه اغوستی یې د محبت کفن پاك
زلیخا یوسف لیلی مجنون عشق پاك کړ — عمر یې که عذرا و امق شیرین کوهکن پاك
بر کت باقی فایده به ځنې سوسی — چه صفا ده لې حاصل که په ثمن پاك
تر قیامته به هغه یا نو نجس وی — چه په محبت کښې نه شي د سبحان پاك (۳)
د هغه دعا طاعت و اړه قبلیږ ی — چه خوراك یې پاکیزه وی اغوستن پاك

ای دولته هزار شکر د سبحان کړه
که دې که له دې دنیا په وخت رفتن پاك

د قران په معنی نه پو هیږ ی هر خوك — چه عمل یې په نه که دورشی له شر خوك
پر سرې د قران امر لکه غر دی — په یو ازی ځان به خه شکل اخلی غر خوك
په معنی به یې بې زده کړې دانا نشی — که حافظ شي درست یې یاد که سراسر خوك
بیا به بې عمله سود فایده نه سو سی — په معنی که شی د هر حروف خبر خوك
بې د حق له معرفته همه هیڅ دی — تر مشرق مغرب که واړه ملك کادر خوك

(۱) ددی بیت لومړی مصرع دالف،لا په نسخه کی نشته .
(۲) البیرونی:ـ «رښتیا ګوی دی په ویـل درست ګفتن پاك» .
(۳) دابیت دالف،ك په نسخه کی نشته .

چە دقناعت کنج نە لری دیر خواردی — کە پادشاه وی دجهان دهفت کشور خوك

سیم وزرد اسایش د پا رەنیە دی — چە پری تل عذاب موسی شەبە کەزرخوك

چەبي‌نن و صال‌حاصل کەلوی سعید دی — لە هغە سره دی چپری برابر خوك

بی کاملە بە مقصود لە چانە سو سی — کە تمام عمر کە گشت پە بحرو بر کە خوك

د معنی خبری در گرا نبها دی — بي عارف نکە خریە د دي گوهر خوك

کە پوبنتنە کەپە گورکنبي‌خدای‌دی‌کوەدی — دین‌مذهب اولا ردی شە دی پیغمبر خوك

پیغمبر وا یە احمد دین سی اسلام دی — خدای سي یو یگانە خدای نشتە دگر خوك

کە تحقیق‌خواب بەورکري امیدوارشە — بیا بە نە عـذا بوی تـا پـە حشر خوك

چە منکر نکیر پوبنتنە پس‌لە سرگ کە — زیات سری پەدي‌خواب نەدی خبر خوك

ای دولتە درست‌بدن بەبي یونورشی (۱)

کە مدام پە یاد کنبي اوسی داکبر خوك

دهر چاپەدربە و بنبی(۲)نشان سرگ — هر زندە لرە بە ورشی پخپل شان سرگ

موت‌جسر پەحدیث یادو حق تەپل‌دی — خکە تل پەد عا غواري درو بشان مرگ

دا جل تا صد بە هر چا لرە ورشی — جمع زرونە بە اخر کاندی پریشان سرگ

فرمان د موت را غلی پر همە دی — پە زرا بە خبلە بیل نە کل خوبشان مرگ

دزو نلوون‌پەباغ دي هیڅوك هوس‌نە کە — پر هر گل‌باندي‌بە و رولی‌خزان مرگ(۳)

مذو کان بە ددنیاپەشە بنادیری (۴) — چەآخر (بي) و راندی‌شتە(۵)پە داجهان‌مرگ

پر فقیر گدای بە چپري سرفە کاندی — چەلەتختە کوز پري‌باسي‌بادشاهان مرگ(٦)

سهر و یان بیجا بیچ زلفي‌سپین مخو نە — لە سیە خالـسرە یکثارنککسخت کما ن مرگ

---

(۱) البیرونی:ـ «شیخ دولتە درست بلن‌بەیی‌یونورشی». (۲) البیرونی:ـ «مونګی».

(۳) دابیت دالف،ك پە نسخە کـی نشتـە.

(٤) البیرونی :ـ «سبادی کا».

(٥) الف،ك :ـ دواړە ویشتە. (٦) الف،ك :ـلە سببە خاك سرە رنگ گرە جلن بتان‌مرگ.

له هیته به بي درست بدن و ر یږ دی ګناه ګار لرچه و رشی په بدشان مرګ
چه له مرګه وراندې و مر خوبن آزادشی دغه به کړی نه شی هیڅ نقصان مرګ
درویشان به بي په ګران بها پیری که په بیع خرڅاوه شی په دوکان مرګ

هر نفس ورته تیار اوسه دولته
ګوره کوم ساعت به در شی ناګهان مرګ

هر زنده لره به ورشی ناګهان مرګ هیڅ صرفه پر هیچا نه که په هیڅ شان مرګ
چیری ته تیاری نه و کړې بی غم شی بیا به هیڅ فرصت درنه که یو زمان مرګ
غافلان له مرګه تښتی ژوندون غواړی هر سبا په دعا خواست که عارفان مرګ
محبان به خپل ژوندون په زیړي ورکه(۱) که دحق له لور په درشی بزرګه مهمان مرګ(۲)
دعورت ژوندون به هیڅ ورته بکار نه شی هرچه د وی و بنی باقی ندع رسان مرګ
لکه داو بنزانو بند پر اتر سپک پاخی (۳) پرنیکبخت مومن به عسی وی اسان مرګ
الکه څوک زنده په اور کښې ایښو دینه دخینو بدکارو به لازیت وی سخت ګران مرګ
دبل مرګ په ستر ګو وینی بی غمی که دنادان سری زیات و یر وی دخپل ځان مرګ
عارفان په مرګ نیستی کښې ژوندون وینی له هستی نیست کیدل ګوری خپل نادان مرګ
دزړه او بنکې بې راتو بې شوی نرستر ګو چه بې واو ریده په غوږو دیار ځان مرګ
زه حیران ورته ولاړ په ستر ګو وینم واړ په وار راځخه بیایې بنه یاران مرګ
جدایي د جهان نرخ اوسنی نه دی همیشه جدا کوی و بله دوستان مرګ
محبت له بي وفا خیزونو مه کړه کل دوستان به و بله بیل که په ارمان مرګ
دغه هسی جوړ ودان بنارونه ګوره په دوه دري قرنه (به) واړه که ویران مرګ
مرګ بي نیاز بنه جوړ کورونه و رانوینه د هیچا تاق به پری نږدی ودان مرګ

په هوس د دولته خوالره خوبن و رشه
...که ژوندون درله درشی له سبحان مرګ

---

(۱) الف، ک :ـ محبان به خپل ژوندون پری وورکه.
(۲) البیرونی:ـ که دحق له لوریه ورشی مهمان مرګ
(۳) البیرونی:ـ لکه داو بنزانو پربند پرانه شی سپک پاخی.

دخو ر زره حقیقت چاته کرمیان خچل — هر سری خدای دانا کری دی په ئخان خچل
کاملان د بل په حال هسی بو هیری — لکه وی احوال دئخان چاته عوریان خچل
دخچل خان حقیقت خان و ته بکاره وی — عارفان چه خه شته و اره گنی خان خچل
همیشه بي له اشنا سره وصال لدی — دشرکت حجاب هیڅ نه لری ترمیان خچل
یو نفس نظر و غیر و ته نه که — پر هر لور دلبر حضور وینی عیان خچل
دبیحد په وا حدی بي نظر نشته — سشرك خان په میان کنبي وینی په گومان خچل
جا هلان دبي وفا په طلب گرزی — له هیچا پو نتنه نه که دا یما ن خچل
چه زه خه و مخه یم خه شوم بیا به خه یم (١) — و معنی ته فکر نه که یو زما ن خچل
سکونت لره که ورشی و به وینی — په توحید کنبي نه خبر یری په نشان خچل
چه دنیا سراسر نه خه و ربکاره وي — په نه خه پسي به زره نه که پریشان خچل

پاك دیدن بي سنت وریاورته خرگند که
دولت هیڅ (٢) طاعت و نه که د سبحان خچل

ددلبر دیدن په هر لوری عیان وینم — هر نظر يي په هر خه کنبي په خو شان وینم
چه سي ستر گي دباطن کري پیر کامل رنبي — په هر خه کنبي یو دیدن دپاك سبحان وینم
نا امید له رحمته هر گز نه یم زه — بو به سل بي زیات ترسو ربلار سهربان وینم
آینه د سکندر جام سي دجم زره دی — حقیقت پکبنبی خرگند دکل جها ن وینم
لکه ستوری کل دلمر په نور کنبي محو ده دی — هسی ئوب دحق په ذات کنبي مخلوقان وینم
پیدا یش داسمان ځمکي ترسیان هرچه شته — په قیام په رکوع و اره سا جدان وینم
چه دقناعت له گنجه بي نصیب نه شه — ددنیا توانگران خوار ترگدایان وینم
له ادمه تردي دمه کل موجود پکبنبي — مجموعه دذات صفات کامل نشان وینم (٣)
په داهسي کم وجود کبنبي دانسان گوره — عرش، کرسي، لوح و قلم، ځمکه اسمان وینم
په میوه کي درسته ونه پته شوي ده — په نظر کي اووه بحره بي پایا ن وینم

---

(١) البیرونی:ـ بیابه خه وم. (٢) البیرونی:ـ دولت شیخ..
(٣) البیرونی :ـ «کامل انسان وینم».

دزړې ذره بادشاه د کل عالم کوز شو    د سپږی کړه مهمان نبي سلیمان وینم
د صعوه کړه سیمرغ د کوه قاف راغی    په ذره کښې درست خورشید خرگند نابان وینم
د دو سان حجاب مي لرې که له سخه خپل    ناست دزړه (۱) پر تخت د دوو کونو سلطان وینم
پر اووه ملک دپاسه سي نظر رسي    هسې مه چه د اسمان څمکې تر سان وینم

ای دولته له پټ شر که پاك شوم درست (۲)
جهان واړه خپل آشنا . آشنا خپل خان وینم

د رحمت نظر پر ما وکړې کریمه    زه عاجز گدای د درمما نم رحیمه
هر ساعت په زاری خواست کرم ته توانا یې    امان راله نفس راندهء شیطان رجیمه
دازړه په ورخ چه وبش و برخه وکړه یې    تا د عشق پیاله راکړې ده قدیمه
د آسمان څمکې بنیاد لا اینبی نه و    د عاشق پر زړه و د ستا د وینې سیمه
حقیقت د کل اشیا تاته معلوم دی    ای خوی شنوا بینا گویا بیمه
ذکر یا پناه بې تا په درخت وکړه (۳)    ای قادر حی القیوم توانا حکیمه
د نعمت شکر دې ویردی ما هیڅ نه زده    بې رضا سپارل و تا ته بې تسلیمه
چه اسره یې بې تا په نور چا کړه غلط دی (۴)    ای قادر حی القیوم توانا حکیمه
داجل قاصد پر ادل سوزی نه که    پادشاهان چه اکوی له تاج وسیمه (۵)
ستا قاصد لسه پادشاهانو نه ویرېږی    که په حکم کښې یې وی اوزه اقلیمه
ته قادر میوه وخشکه ونې ورکړې    هم دانا فرزند پیدا کړې له عقیمه
ساره هم دانیا کلو عقیمه وه    تا اسحاق فرزند ورکه له ابراهیمه
عام که ستا عبادت که طمع بهشت که    یا یې ترس په زړه کښې دبرشی له جحیمه
د خاصانو عبادت ستا خوشنودی ده    اسر ستا پر خای کوی بې رجا بیمه (۶)
نفس لیم جاهل ظالم بخیل یادشوی (۷)    خه طاعت شی له ظالم بخیل لیمه

---

(۱) الف،ك:- «ناست دزړه تخت». (۲) البیروني:- شیخ دولت شوم په توحید کړ درست له شرکه پاك.
(۳) البیروني:- ذکر یا پناه بې تا په درخت کړله په اره دعزت دی ونه دوه نیمه
(٤) دامصرع دالف،ك په نسخه کې نشته. (۵) الف،ك :- «تاج بوییمه».
(٦) البیروني :- خه طاعت شی له ظالم بخیل لئیمه . (۷) دامصرع دالبیروني کتابخانې په نسخه کې نشته .

دشیطان پسرو په جنګ جدل لونی که — دنفسك دا هل حب اه زر و سیمه
د د ازا په نظر د پرنا دا ن لیده شی — دخانه بنیادچه پدی په پردی سیمه
عا شقا ن به کل زنده له قبره پا خی — که ددوست د کپسوبوی ورورې نسیمه
پر عاشق دلدادهځه‌شکل دیرمحنت وي — په جهان تنهارو ز کاربي يار ندیمه
بیما ری د کنا ها نو کفا رت د ی — دتند رست قدرسم نه وی له سقیمه
په حسب نسب په جاه غر کی مه کړه — په قیامت نشته عطابي قلب سلیمه
چه مشغول سي پهځه که بي تاغلیم دی — ته په خپل کرم اما ن را له غلیمه

شیخ دولت‌به (دغه)ستادوستی پري نه‌پدی (۱)
که ظالم بي درست بیرون که له ادیمه

چه په ریا ضت بند نه کړی پنځه حسه — د پا کی لا في مه وعه نجسه
حق حضور ناظرهرځای قصدد کناه کړی — هیڅ په‌زړه کنبي‌شرم نه‌لري ناغسه
د بایـزیـد مسکین مریدشه که دانایي — د خفی ذ کر تلقین ځنی را نسه
که دخلیفه په لاس بي تو به وکړی — په کیمیا تلقین به زر که له‌تا مسه
پیر کامل به جها ن وغو اړی سیارشی — په‌تلوا ر دپیر ناقص قبضه مه نسه
چه‌طالب واصل (له)حق که‌پیر کامل‌دی — جدايي مه‌کړه نه هسی بیه مونسه
اروا حا ن فریښتي به و وینی خو شا نه — په تلقین د زړه ا رسی کړ ه مقدسه
دکا مل (د) ناقص دیر دیر تفاوت دی — برابرنه‌دی گل‌خارغلو ز ه‌غونسبه(۱)
دهمت ځنګو نه وګړ ه پری والو زه — په‌اختیا ر بیر ون له‌طاقه مټر نسه
پر اعلی اسفل قربت دحق یو شان دی — دا حمد معرا ج به نه وله یونسه

ځا ن جها ن په‌لا اله نیست کړ ه دولته
بي جهت احد حضو ر پر هر ځا ی کسه

زمدام دمرګ له‌ترسه په‌هیبت اوسم — دقیامت له‌سختي‌روخی په‌دهشت اوسم

---

(۱) البیـر ونـی :ـ «شیخ دولـت بـه ستا دوستی پری نه‌پدی.»
(۲) الف،ك :ـ « غلو غونه بسه».

مرګ استازی د ښېښتن به لو مساعت راشي (۱) یو نفس چه ذکر نه کړم په غفلت اوسم (۲)
اختلاط له غافلانو لویه ګناه یاد دی خکه زیات له خانه ګوښی په خلوت اوسم
آشنایي مې له هیڅا سره غرض نشته په معنی له خپله خانه په عزلت اوسم
له خپل عمر په طاعت کښې د حق تیر کړه نن سر بلند به په عالم کښې د قیامت اوسم
د عادت په دام کښې بندیم خدای مې خلاص کړي ژر بندي وان په بند تر څو مه د عادت اوسم
د دنیا له تنګه سرایه به رحلت کړمه زه په عقبی به تل ترتله په عشرت اوسم
د رښتګان به ساندي وايي په ثنا زما تل خوشحال به په روضه کښې د جنت اوسم
د ښېښتن صفت به وایم په څو لونه ډیر
څو ګویا په حوله په ژ به د دولت اوسم

محبت په زړه کښې نهان دی د هر چا یو پټ خو ګند و جو د پل نشته مګر خدا یو
عبث یو زړه له محبته خالي نه دی هر سړی خپل دوست لري جدا جدا یو
بې وفا دوستي له هر چا سره مه کړه په صورت کښې د زړه نوبر دی آشنا یو
هر چه شته په دوارو کونو د حق جو د دی بې د حق له جوده نشته جو د سوا یو
ګرد د شرک له مخه لرې کړه وګوره په ظاهر باطن بل نشته د لربا یو
د کثرت انبوه بې څو لونه پیدا که په هر هر یوه (۱) کښې څو د حق دی تنها یو
کرامت بې معرفته په خس نه ارزي (۳) که مرغه غوندی والوزې په هوا یو
خپل طاعت وارہ و ر که ګناه بې واخلي چه غیبت له چا و وایې پس شا یو
د صورت په سر شیخو لګه نه سړی ډیر ارمان له دنیا یو و ز هر چا پخوا یو
دولي د نبي نښه دی شکر ګانه (۵) که له تاسي واز مو بې خدای په بلا یو
دی د اولیا نامه پرې بانديږ نه ږدي څوبې نه نه په بلا کښې مبتلا یو
له هزار لباسه وا غوندی خان پټ که څو د احد د زما ني ښېښتن د ی بیا یو

(۱) البیروني :ـ «آوازه مې د مرګ ولاړه په جهان کی».
(۲) البیروني :ـ «همیشه ورته تیار په طهارت اوسم».
(۳) الف.ك :ـ «په هریوه».
(٤) الف.ك :ـ کرامت بې معرفته خس نه ارزي .
(٥) البیروني :ـ «دولي د نبي نرخ دی شکر ګانه».

بی میرزایی ارزانی بسی مخلص یاره — بل شاعر برابر نەدی پښتون ستایو

چه له تا سره سیا لی کوی دو نته
بهنر شعر دی خوك و وایی تر دایو

لەاسرار بل خوك پری نەدی خبر یو (١) — بی هادی چەدی پسرو دپیغمبر یو

ده پیران په جهان هرخو ډیردی څه شو — پەاسرار دروبیا ن نشتەبرابر یو

کەخوك ډیر کاله جاروزی تفحص کە — روښان پیر به نه بیا موسی په کشور یو

هیڅ مقام دده له سریده پټ پری نه یود — هسی حب لەفرزند نه کەخپل پدر یو (٢)

داتو مقاموسد یی پر لار کینبود (٣) — شیخ بایزید و په مثال ثانی سکندر یو

دده قدر به خالق دزرته څرگند شی — چه په زړه دی ذکرو که څه اثریو

چه سر ید لە سکو نته خبر وی خپل — نشته پیر داسی بل په بحر وبر یو

په زمانی ډیر عالم منفعت بیاموند — په جهان باندی څرگند شو لکه لمریو

لکه دی د طالبانو د ډیری که — پەجهان کښې هسې نشته بل رهبریو (٤)

دکـلام تاثیر یې گوره اعتبار کړه — دی تحقیق دنور مظهر دی دسرور یو

ډیر بې شمار مسر به بیا موسې دولته
که دده په امر و بازی خپل سریو

ای عجب په صورت څه شکل موزون یې — آینه د حق بې مثل بې چگون یې

نی احسن التقویم په قرآن یاد یې — هسی نه چه نورحیوانان کمین دون یې

خدای کریم ډیر عنایت درباندې کړی — درست په لاس دقدرت روغ درون بیرون یې

ستاپه شان صورت بل نشته په جهان کښې — ته انسان خبرله بزرگ عالم اکون یې

و ار ەدی ستا له طفیله پیدا شوی — په تحقیق دځمکې څراغ نور دگردون یې

(١) البیرونی :ـ «بل خوك پیر نـەدی خبریو» .
(٢) دابیت دالف.ك په نسخه کی نشته.
(٣) الف.ك :ـ «دخدای یـاد یـی نفس یاجوج په سد کە».
(٤) البیرونی :ـ دلبریو» .

ګل فرښتوستا و بابا ته سجده کړی — د غه هسی بختور سعيد ميمو ن بي
تر تا به په پيدايش کښې د حق نښته — ته لوی پير کامل د هرچار هنمو ن بي
په اخلاص عبادت کړه اجر مه غواړه — که بنده د حق بې شبه بې نمون بي
بيابه پس له مرګه ډير پښيمانی کړي — له مولی سره اشنا شه په ژوند ون بي
بې وفا ميته له هيچا سر مه کړه — پر ليلی باندې عاشق شه که مجنون بي
تل تر تله وفا بې به څني مو سي — داپښتو خبره پند کړه که پښتون بي
ناګهان (۱) به موج وهي وارله به يوسي — ددرياب پر مخ وخه جو ړوي خو ن بي
دعقبی زيرمه به نه شي ستا له لاسه — چه مدام ګرفتار دنفس په ډير فنو ن بي
د ښيګړې کار به ستا له لاسه نشي — چه تمام د نفس شيطان پر لو ری ستون بي
دفاني دنيا کار کړی د باقي نه کړی — د دانا په نظر ډير جاهل مغبون بي
محبت ورسره مه کړه که دانا بي — دادنيا بدکار د ښځه ده پر يښو ن بي
په دايم فکر د زړه ز غر بې نه کړی — اند يښنی مثال سيری ته سپرتون بي
پر هر لو رچه اندېښنې څې پسې د روسې — دکامل له ستو د د طريقې ستون بي
سحر ګري د نيا ده در باندې يو که — له مقصود ه بې بيل کړی په افسون بي
ته د مال په دوستي زړه د دروېش خوږ کړی — تحت الثرای لره به ځې ملی د قا رون بي
په دنيا د د ښمنانو عمل مه کړه — که ربښتيا د موسی و روړ لکه ها رون بي
چه د خدای رسول پر امر ګردن نه ږدې — په څه ډيره سر ... بي
پر يشان زړه دي په دينه طمع بيماردی — حسد زده يکښې خو بې زړه لکه لون بي (۳)
حق باطل يو د بله پيژاندي نه شي — څه شکل ډير د نفس ارزو دې زبون بي
بينو ده ورسره څه دل بستګي کړی — بې وفا دنيا نه هر چا پاتې شون بي
پتېيوز ړه که خوشحال کړی حج اکبر دی — نه چه زر ګانه ګرفتار په شبخون بي
تو کل پر خدای لره ډير هره چاری — له خبر له حقيقه د زونو ن بي
سرکښهما ن به ملاقا تد رسر مو که — که هرڅو ګرندې ښپې تمرو ن بي

(۱) الف،ك :- «ناګاه».
(۲) البيروني :- «حسد زړه يکښې خوږ لکه لون بي».

په دارو علاج به خلاص ورځني نه شې — په سفر په کور په غر که په هامون يې
داجل ساعت که درشي دلگير مشه — په دغه لاري ياران و لاړل زرگون يې
بې رغندلو به يوه لواړي پريږنه ږدي — دا فلك لکه ميچن زنده سرنون يې
لهعاصي چه که بويتنه په دوزخ کښې — په ادب يې کښينوي په زنگون يې (۱)
چهعمل پهعلم نه کړي سوددې نشته — تهتمام تحصيل دې کړي دي اخون يې
لهپادشاه دجهان شيعدلدي نه وي — ميراثي دحرص مناك شيطان ملعون يې
پهقيامت به يې لهحال پوشتيده وشي — سار عيت لکه رمه وته يې شپون يې
ددنيا به ډېر يوان نعمت مهغوليږه — که د دوست پر ښايسته جمال مفتون يې

هرنظر وپاك جمال نه کړه دولته
كهعارف دخداى رحيم ترمه بيچون يې

## دا قصيده دڅلورم خليفه حضرت على كرم محمد روح الله په مرثيه کې ويل شوې ده:-

غم د يده زړه مې محزون شو — پرمخلص يار پسې خون شو (۲)
ما يې زيرمه دد وا کړه — درد يې لا ترحد افزون شو
له غنى يې مدد نه دی — له فراقه به مجنون شو
يو ساعت مې کم هير يږي — دی زما پر زړه زرغون شو
روح يې وا لوت واسمان ته — تن يې پټ (په) خاك مدفون شو
ابدی ژوندون يې بيا موند — چه له دې ملکه بيرون شو
په دنيا کښې رستگار و — په عقبی هم مفلحون شو
د بدن له چاه ووت — د يدار يې بعر فون شو
ميخ يې پټ که له عالمه — درست وحق ته راجعون شو
فرښتو زيری باندی وکه — پورته خپی خای دې گردون شو
خوښ روان شو وجنت ته — بې انده وه لا تخافون شو

---

(۱) البيروني :-په ادب يې كښينوي پـه زنگنون يې •.
(۲) داقصيده دالبيروني كتابخانې په قلمي نسخه کې نشته .

همیشه په‌خوشحال اوسی | په جنت کې خالدون شو
عنایت پری کریم وکه | لا خوف لا یحزنون شو
په‌عرحال لښنې چه زنده و | په‌دنه حال تمو تون شو
دعمل کتاب بې ولوست | بې له سرګه تبعنون شو
بې زواله بې نقصان تل | تر ابده تحشرون شو
د فنا له ملکه و لېږی | وخپل اصل وته ستون شو
چه راغلی دی له کومه | بېرته بیا منقلبون شو
دی راغلی دی له خدایه | وخپل خدای‌ته راجعون شو
د کثرت له منکه ووت | دوحدت باغ بې مسکون شو
قام د عار فانو سری | له نظره تکتمون شو
تر د د سختستانو وا ړ و | اصل خپل ته راغبون شو
داژ وندون‌په خوب شمېر لی | سرګ له دې خو بعو یښون
داژ وندون به‌خوب‌شمېر لی | سرګله دې‌خو به‌و یښون‌شو
سرګ ویښوالی دی له‌خوبه | خوبش اوده و یښ اکنون شو
روح‌جاری‌خښتن‌دی‌کوردی | تن‌خانه ده بې ستون شو
عجب سحر بې پرې پوکه | که په بند خوبش په داقسون‌شو
ترهغه‌نادان بل څوک دی | چه‌غره په‌دا ژوندون شو
روح موسی شیطان فرعون | زره‌عیسی دی‌نفس‌قارون شو
د بل چا یاری‌به څوک‌ه | چه الله یې ینصرون شو
ترس بې نه لېږی له نورچا | چه له حقه نارعبون شو
هر څیز و بره‌له‌ده‌کاندی | چه له خدایه قانتون شو
بد صفت ورځنی ووت | په‌به‌خوی‌خصات‌شحون‌شو
تل به نه وی په یوه حال | چه پیدا له کاف و نون شو
پاکی بیا مونده هغه چه | ترك د سما تجبون شو
چه‌بې‌بې‌خدایه‌څه دوست دار | د هغه څیز ینفعون شو

# الرباعيات فی بیان الف باالی یا

(الف)

الف: اول آخر تنها دی — له شر کته نقطه جدا دی(۱)
دقران پر سر دی دېلې — هم محیط په ټنبی عو جادی

(ب)

ب: بندګی لره پیدادی — چه پر خمکه پر سما دی
چه بندګی دخښتن نه ده — له نعمتو بې نوا دی

«ت»

ت:۔ توبه و ده تایب شه — د خپل اصل ته راغب شه
چه له اصل خبر نه وی — ځنې و ښتنه غایب شه

(ث)

ث:۔ ثانی له دله دور کړه — په لمانځه کښې ز ړه حضور کړه
بې دحق له پاك دید نه — حب د حورمه د تصور کړه

(ج)

ج:۔ جمال دحق حضوردی — عجب بې ما نندهنور دی
چه طلب ددې نو رنه ده — عغه قطعی بې شعور دی

(۱) داریاعیات دالبیرونی کتابخانی په نسخه کی نشته .

(ص)

ص: صلوات ددین ستون دی — چه لمونځ نه نوی سلعون دی
بحث انبر ای لره به دروسی — بل دادوزخی نارون دی

(ض)

ض: ضامن دزرق یوخدای دی — چه پاو رنه که پرې وای دی
عرچه ششو که په رزق کښې — کښینه جهنم بې خای دی

(ط)

ط: طاهر شه طهارت کړه — طهارت له معصیب کړه
به عمه … ه به پاك شه — له دغه پس عبادت کړه

(ظ)

ظ: ظاهر باطن احد دی — احد الله الصمد دی
برابر ما ند بې نشته — لم یلد و لم یولد دی

(ع)

ع: علم لدن فرض دی — دغه فرض په هر چا قرض دی
چه له فرضه خان خلاص نه که — سلامت پر سما ارض دی

(غ)

غ: غیر غوږ کړه واړه — بې مولی واړه و نغاړه
تر دیدن ددوست قربان کړه — داجهان هم دغه دواړه

(ف)

ف: فانی شه په توحید کښې — ذیر نعمت دی په تفرید کښې
شکر کړه په دا نعمت تل — چه دا موی په مزید کښې

ق: قادر قدیم توانا دی — په هر کار دا نا بینا دی
په رضا بې چارې کېږی — چه تیوم گویا شنوا دی

ك :- کریم رحیم رحمان دی
پر زمین هم پر آسمان دی
و هر چا وته ر سوزی
پر گل خار به بد عان دی

(ل)

ل :- له اصله به خبر شې
پیر کامل لره ده ورشی
د توحید علم به زده کړی
تر هر چا به معتبر شی

(م)

م :- منزل مغه رښتیا دی
چه پري تللی انبیا دی
چه پرلا ر دا قبیا خی
ابد ال قطب او لیا دی

(ن)

ن :- نبي الله هنده دی
نفس مرده دل یې ژندهدی
حقیقت دا شیا و یني
په هر گند پت بیننده دی

(و)

و :- ولی نبي یو د ینه
په یوه ستر گه یې وینه
دو یې و با سه له میانه
یو شان کړه په دوا رو و مینه

(ه)

ه :- هادي به رهنمای دی
د توحید د با غ همای دی
پر هر چا چه سیو ری و که
دی پادشاه شی که گدای دی

(لا)

لا :- لاهوت بیحد دریاب دی
دناسوت مثال حباب دی
هر چه دا حبا ب فاني که
نورځه نشته سحر اب دی

(الف)

الف: اول اخر یوجود دی
له هر جود سره موجود دی
چه په دامتی پوه نه وی
مغه پاتې بې مقصود دی

(ی)

ی: یوحق دی په دوه کو نه
بازی که په خو خو لو نه
په خپل ذات یوشان محیط دی
له موسی هم لهفر عو نه

## څلوريځی

خو دیو حق دی بازی کاندی — یو رته بنکته و رو سته و ړ اندې
چه ځان محوه که په ده کښې — صد رحمت پر دغه با ندې

تل نو دین هم بو وا یی — پټ په زړه کښې بې ستا یی
په دوه کو نه باور وکړه — وجود هیڅ نشته بې خدای

دایو جود دی چه لیده شی — چه څه شی و اړه په ده شی
بې دده له حکم چا رې — په ظاهر با طن هیڅ نه شی

تل یا ری له خدایه غواړه — هر ساعت ور ته پټ ژاړ
دی به رحم په تا وکه — دربه که چه څه شته واړ د

تل یاری غواړه له خدایه — خود پرسته خود نماید
نه یاری در سره وکه — ذوق به کړی په دواړه سرایه

تل یاری غوا ړه درویشه — له کریم رحیم همیشه
هرسبا رزق دخلکو یش دی — بې نصیب مه ځه له ویشه

تل یاری غواړه له حقه — آشنا شه له دې سبقه
له دوستانو مدد کار شه — آخر کم نه یې له بقه

سجین سنګ پردوزخ باندې — تراووه ځمکی دلاندې
دمغو بدبختو ځای دی — چه دلې ډېر ګناه کاندی

همه لس ډېر بختور دی — چه یې مستقیم باور دی

. . . . . — . . . .

ماده د حق د لارې — زه خر ګندو ایم په ناړې
محمد اخر زمان دی — میاروښان یې پسرو ناړی

میاروښان دده سپر دی — تر آفتاب یې زیات ضو دی
روښنایې دقمرستوری — تل دده د مخ پر تو دی

میاروښان یې امتی دی — من احیا یې سنتی دی
چه زنده یې که سنت ده — فیسو خلیفتی دی

میان روښان یې له است دی — زنده کړی یې سنت دی
چه سنت دنبی حی که — خلیفه په روایت دی

د نبی خلیفه دا دی — چه سنت د ده بجا دی
چه سنت یې په ځای کړی — جا نشین دا نبیا دی

هر چه سجاده نشین دی — دی محکم په کار ددین دی
دتوحید سړی بو لی — میان روښان غو ندې امین دی

چه روښان غو ندې امین شی — دی ددین په کار متین شی
وتوحیدته سړی بولی — دی رحمت للعا لمین شی

میان روښان صادق رهبرو — له لد ن علم خبر و
سړی خدای و رته بلل و — منع په طر یق دپیغمبر و

چه تمام امید بې خدایه په لا سپای که | په خپل بدیقین به شوې بر خه بای که
---|---
حقیقی مومن هغه دی بې گومانه | چه امید له هر چاوشلوی پر خدای که

حقیقی مو من تکیه نه که بې خدا یه | خدای د ده دپاره کړی دوه سرا یه
---|---
دیقین لنگر بې غره غوندې محکم دی | دصورت جهازبې نه خوزی له ځا یه

حقیقی مومن پر خپل قسمت راضی دی | داد نیا بې پېژندلې عا رضی دی
---|---
چه بې حب دجمله بدو سره یادشوی | بلند همت له کار اعتراضی دی

حقیقی مومن مدام د کوچ تکل که | کار وبار و ته حق ته پرېږدی توکل که
---|---
چه تمام یقین باور بې پر حق وشی | حق قادر بې ددوکونو مشکل حل که

بسم الله الرحمن الرحيم

ای کریم رحیم رحمانه        ای قد یمه بې نقصانه
ای خالق دخلا یق ته        ای دهر سر زوق رازق ته
ای دهر عیب ستا ره        ای بې عیبه کرد گا ره
ای سمیع بصیر علیمه        ای خالق رازق حکیمه
ای دمخلوقانو خدایه        عطا بخش خطا بخشا یه
ای اول اخر احده        لم یلد هم لم یو لد ه
ای په هر بنده روفه        په کرم سخا معروفه
ای صاحب غریب نوازه        دمسلم هند وکار سازه
دهمه گناه غفار بې        دعا صی آمر زگا ر بې
ته ظاهر باطن احدیې        لا شریکه یا صمد بې
ته بې چونه بې چگون بې        ددوستا نو رهنمون بې
ته خالق دکل اشیایې        یفعل الله ما یشاء بې
ته توفیق را کړ(ې) وماته        ستا ثنا به کړ م بیا نه
مثنوی به کړم آغا زه        ستا ثنابه کړم دوردرازه
مثنوی به وو ایم زه        تا صمد به ستا یم زه
ستا ثناهر گوره دېره        د کل خلک تر شمار تېره

ستا ثنا ده دېره گرانه — ده بې حده بې پا یانه
کهشي دریا بونه توري — کاتبان شي جن انس ستوري
کل گیاه شي قلمونه — درست کاغذشي اسمانونه
ستا ثنا گوی تر قیامته — وبه نه گوی شي تمامته
قلمونه به بې سات شي — لهسیاهي به تش دوات شي
ستا ثنا به نه شي پوره — کهبې کوي‌شي تردرېسوره
ستا ثنا دي بي غایته — لهاغاز لـه نهایتـه
هیڅ کارنهشي‌ستا بې‌حکمه — له جماد نبات صم بکم
په قوت ستا هرڅه بوري — دریاب څمکې اسمانستوري
ستا پهزورد مشکوي‌یني — سترگې ستا په قوت وینې
ژبه ستا په قوت وا یي — روح تن ستا په قوت بیا یي
زه بې حول بې قوت یم — درستسوجودستاپهقدرت‌یم
زه بې حول یم‌بې زوره — درست‌پهتاسوجودیم گوره
حول‌ستادي‌هم قوت ستا — زه سوگند کړم په عزت ستا
ما څه مه گڼه ترسیان هیڅ — هم نهال یم هم عیان هیڅ
ما څه مه‌کڼه ترمیان ته — هم نهان یې هم عیان ته
هم باطن یې هم ظاهر یې — هم اول یې هم اخر یې
بې تاهیڅ نشته سوجودڅه — د هغه جهان وجود څه
واړه ستادي بې چگونه — پرآسمان څمکې رنگونه
کل پیدا له تابې چونه — آسمان څمکې‌دریاب غرونه
کل له تا پیدا ای پاکه — هرچه شته پرنهه افلاک
کل له تا پید دي حقه — لوی له فیله کم له بقه
واړه دي پیدا له تانه — هرچه شته پردوه جهانه
چه څه شته‌هغه‌کل‌ته‌یې — هغه نشته چه ته نه یې

په تاهست دی کل وجزو ۔ اجزا هم هست په تا هم عضو
دهرچاژوندون په تا دی ۔ که پادشاه وی که گدا دی
کور په تاودان هم کلی ۔ بې هر چا ته رسیدلی
د هر چا ودانی ته بې ۔ بینا بی د هر لیمه بې
غوږ هم په تا شنواد ی ۔ خولې هم په تا گویادی
د همه بدن ژوندون بې ۔ هرچه شته په عقبی دون بې
ته بې حده بې پا یان بې ۔ بې جهته بې مکان بې
څوك خبر (نه)دی له رازه ۔ دوست نوازدښمن گدازه
پر رضا دې شی کل چارې ۔ څوك پرلارکړې څوك بې لارې
چا ته ښه لار کړی وریته ۔ څوك وینی د خپل پلیته
څوك پرسمه لارروان کړې ۔ ښه لایق بې دجنان کړې
دچا برخه کړې له ناره ۔ څوك مسرورکړې له دیداره
دچا برخه تاج وتخت کړې ۔ څوك ناری ظالم بدبخت کړې
څوك لا یق د علیین کړې ۔ دچا ځای کښته سجین کړې
څوك موسن ښه ایمان دار کړې ۔ څوك لعین کافر بد کار کړې
یوروان کړې وآسمان ته ۔ ور پرې پر انزی جنان ته
هغه بل پا تې پر ځمکه ۔ ودوزخ ته ښکته تله که
هرڅه کړې پادشاه عادل بې ۔ سزا کړونی دباطل بې
هرچه کړې واړه حکمت دی ۔ په کښې سود ډېر منفعت دی
که صحت که بیماری ده ۔ که عزت دی که خواری ده
چه څه کیږی واړه سوددی ۔ هرچه شی واړه مقصوددی
که څوك ژوی که څوك مرینه ۔ د بر سود منفعت لرینه
خدای دې سرپوشیده کړی ۔ څوك بې کم دی پرې پوه کړی
مه کړه پېر خښتن لارې ۔ د دا نا په د غه چارې
یو یو پېر صاحب حلم ۔ د ی دا نا په د غه علم

| | |
|---|---|
| یو یو پیرچه ترك آزوی | مگر پوه دمرگ په رازوی |
| یو یو پیرصاحب دمقصودوی | چه خبر دمرگ په سود وی |
| یو یو پیرصاحب د حال وی | چه بې زده دمرگ احوال وی |
| یو یو پیروی صاحب ذکر | چه بې مرگ ته رسی فر |
| یو یو پیر په ترك هرزه دی | چه بې نوش دمرگ مزه دی |
| هغه زده چه مرگ راحت وی | په کښې دبراینی نعمت وی |
| هغه زده چه مرگ شیرین دی | تر همه نعمت مهین دی |
| هغه زده چه پوه دین دار دی | دوست خې دوست ته مرگ دار دی |
| هغه زده چه نیك مقبول دی | دوست خې دوست ته مرگ وصول دی |
| هغه زده چه مردانه دی | دوست بې دوست مرگ بهانه دی |
| تا کل شی هویدا کړی | بد دی نه دی پیدا کړی |
| د یوه په خان که بد وی | هغه بل لره مدد وی |
| یو سړی دیوه یار دی | دبل دشمن خون خوار دی |
| د یوه په خان ردبد شي | د بل نی خواه ولد شی |
| اورد سمندر خپل کور دی | بل حیوان لره مرگ گور دی |
| د ماهی او به ژوندون دی | د سړی مرگ واره یون دی |
| په گندگی ذوق که گونگټ | د سړی په پشت رټ |
| څکه بد په جهان نشته | چه څه شته همگې به شته |
| د مار زهر خپل حیات دی | د سړی په خان ممات دی |
| ای د کل خلق خالقه | د هر درد طبیب حاذقه |
| ای د هر بیمار طبیبه | هیڅوك نشته بې نصیبه |
| کل په تاست دي حبیبه | ای وهر چا ته قریبه |
| کل په تاست دی غفاره | هرچه ثبت څه په دوه داره |
| کل په تاست دی تل بشوری | نه فلك لمر قمر ستوری |
| ای له هر چا سره یاره | ای له هر چا تر کناره |
| کل په تا ست دی جنبش که | باداو به اورهم خاورو خوشکه |
| ستا په زوروشوری کل مست دی | په دوه کونو څه چه هست دی |

